


# سیندونه هم مري

(د اسحاق ننګیال د شعرونو منتخبات)

راټولوونکی
محمد اسمعیل یون

۱۳۸۷ل

# سیندونه هم مري

(د اسحق ننگیال د شعرونو منتخبات)

راټولوونکی

محمد اسمعیل یون

بسم الله الرحمن الرحیم

## کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | سیندونه هم مري |
| شاعر: | اسحاق ننګیال |
| راټولوونکی: | محمد اسمعیل یون |
| خپرندوی: | یون کلتوري یون |
| چاپشمېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| لومړی چاپ: | ۱۳۷۷ل کال |
| دویم چاپ: | ۱۳۸۷ل کال |
| د راټولوونکي پرله پسې نومره: | (۱۴) |
| د خپرندوی پرله پسې نومره: | (۱۴) |
| کمپوزر: | وفاالرحمن وفا |

# نیولیک

| ګڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | ددې اثر دویم چاپ | ۱ |
| ۲ | یادونه | ۳ |
| ۳ | سریزه | ۱۸ |
| ۴ | ننګیال د نورو لیکوالو له نظره | ۴۰ |
| ۵ | هغه شپې هغه کلونه | ۴۴ |
| ۶ | خیبري تنده | ۴۵ |
| ۷ | طلایي ماهیان | ۴۶ |
| ۸ | ښکاري ته | ۴۷ |
| ۹ | ښار | ۴۹ |
| ۱۰ | ګناه | ۵۰ |
| ۱۱ | غزل | ۵۱ |
| ۱۲ | تشې هوجرې | ۵۲ |
| ۱۳ | د سرو وینو د شپو ښانګې | ۵۳ |
| ۱۴ | شپه | ۵۴ |
| ۱۵ | نصیب | ۵۵ |
| ۱۶ | انګازې | ۵۶ |
| ۱۷ | ژوند ته ژړا | ۵۸ |
| ۱۹ | درشل | ۵۹ |
| ۲۰ | لوونه | ۶۰ |
| ۲۱ | مات خوبونه | ۶۱ |
| ۲۲ | کوټنۍ | ۶۳ |
| ۲۳ | باور | ۶۴ |
| ۲۴ | د مسکو پېغلې ته | ۶۵ |
| ۲۵ | سترې مور مې | ۶۶ |
| ۲۶ | سترې شعرونه | ۶۷ |
| ۲۷ | راشئ او وګورئ | ۶۸ |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۸ | شومه دم | ۷۰ |
| ۲۹ | شمشاد شمله، زېږې خبرې | ۷۱ |
| ۳۰ | د خاورین کلي ناوې | ۷۲ |
| ۳۱ | فصل | ۷۴ |
| ۳۲ | ښکاري نظر | ۷۵ |
| ۳۳ | زړه سوی پر غوټۍ | ۷۶ |
| ۳۴ | د بې لارو پل | ۷۸ |
| ۳۵ | سیلۍ | ۸۰ |
| ۳۶ | د شهادت کیسې | ۸۱ |
| ۳۷ | درې نومونه | ۸۳ |
| ۳۸ | د ماضي پاڼه | ۸۴ |
| ۳۹ | حاصل | ۸۷ |
| ۴۰ | دا ستوري هم توبې شول | ۸۸ |
| ۴۱ | هغه ورځ | ۸۹ |
| ۴۲ | که سپوږمۍ نه وای | ۹۰ |
| ۴۳ | لمبې په دام کې | ۹۲ |
| ۴۴ | ښېرې په مالت کې | ۹۵ |
| ۴۵ | آس (۱) | ۹۶ |
| ۴۶ | هیلې | ۹۸ |
| ۴۷ | سلامونه | ۹۹ |
| ۴۸ | غلا | ۱۰۰ |
| ۴۹ | ماڼو ته سرود | ۱۰۱ |
| ۵۰ | لاس راکوې او که نه؟ | ۱۰۴ |
| ۵۱ | موسم | ۱۰۶ |
| ۵۲ | زما لیلا | ۱۰۷ |
| ۵۳ | ستا وفا | ۱۰۹ |
| ۵۴ | کیسې | ۱۱۰ |
| ۵۵ | لکه سپېڅلې لوګوس | ۱۱۱ |
| ۵۶ | ږلۍ | ۱۱۲ |
| ۵۷ | دا کلی مه ورانوئ | ۱۱۳ |

| | | |
|---|---|---|
| ۵۸ | د سفر په لاره | ۱۱۵ |
| ۵۹ | د میلاد په شپو کې | ۱۱۶ |
| ۶۰ | د چړې په څوکه کې | ۱۱۸ |
| ۶۱ | د رڼا کلي ته | ۱۱۹ |
| ۶۲ | د شپې پر بام | ۱۲۰ |
| ۶۳ | د رڼا مرګ | ۱۲۱ |
| ۶۴ | ته لکه لمر | ۱۲۲ |
| ۶۵ | سپرلي ته | ۱۲۳ |
| ۶۶ | څاڅکي څاڅکي | ۱۲۵ |
| ۶۷ | پسرلی، ږلۍ، باران | ۱۲۶ |
| ۶۸ | لیک | ۱۲۷ |
| ۶۹ | سیوری(۱) | ۱۲۹ |
| ۷۰ | شناختې | ۱۳۰ |
| ۷۱ | ګامونه قدمونه | ۱۳۱ |
| ۷۲ | تو پییر | ۱۳۳ |
| ۷۳ | کلی | ۱۳۴ |
| ۷۴ | چغه | ۱۳۶ |
| ۷۵ | د پښتو خبرې | ۱۳۷ |
| ۷۶ | د ویر مالت | ۱۳۸ |
| ۷۷ | پسرلی | ۱۳۹ |
| ۷۸ | کلیزه | ۱۴۱ |
| ۷۹ | عبدالباري جهاني ته د هغه د شعر په ځواب کې(۱) | ۱۴۳ |
| ۸۰ | تاک | ۱۴۷ |
| ۸۱ | دلبرې | ۱۴۹ |
| ۸۲ | ازادي | ۱۵۰ |
| ۸۳ | (څو منثور شعرونه) زموږ مړینه | ۱۵۲ |
| ۸۴ | درد | ۱۵۴ |
| ۸۵ | پیغمبران هم ژاړي | ۱۵۵ |
| ۸۶ | برخه | ۱۵۷ |
| ۸۷ | دنیا | ۱۵۸ |

| | | |
|---|---|---|
| ۸۸ | مساپر | ۱۵۹ |
| ۸۹ | پياله | ۱۶۰ |
| ۹۰ | لاره | ۱۶۱ |
| ۹۱ | کب | ۱۶۲ |
| ۹۲ | مينه | ۱۶۳ |
| ۹۳ | ثانګه | ۱۶۴ |
| ۹۴ | زه او غر | ۱۶۵ |
| ۹۵ | د غنمو وږی | ۱۶۷ |
| ۹۶ | کښت | ۱۷۰ |
| ۹۷ | عبدالباري جهاني ته !(۲) | ۱۷۱ |
| ۹۸ | وينې پر کاله | ۱۷۳ |
| ۹۹ | بيديا | ۱۷۴ |
| ۱۰۰ | ګيله | ۱۷۶ |
| ۱۰۱ | شيخ | ۱۷۷ |
| ۱۰۲ | ګړۍ | ۱۷۸ |
| ۱۰۳ | پوښتنه | ۱۷۹ |
| ۱۰۴ | دا کلی دا وطن | ۱۸۰ |
| ۱۰۵ | جنازې | ۱۸۲ |
| ۱۰۶ | کلی- دېره | ۱۸۳ |
| ۱۰۷ | ګلونه | ۱۸۵ |
| ۱۰۸ | د ((ادم)) وصيت | ۱۸۶ |
| ۱۰۹ | د احمق په لټون | ۱۸۸ |
| ۱۱۰ | بادشاه او معشوقه يې | ۱۹۲ |
| ۱۱۱ | پر قبر مې<br>۱۹۶ | |
| ۱۱۲ | بزګر | ۱۹۸ |
| ۱۱۳ | بنګړيواله | ۱۹۹ |
| ۱۱۴ | غچ | ۲۰۲ |
| ۱۱۵ | ښاپېرۍ | ۲۰۴ |
| ۱۱۶ | سيلاني بلبلې | ۲۰۶ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۱۷ | روږده | ۲۰۸ |
| ۱۱۸ | تنده | ۲۰۹ |
| ۱۱۹ | ویرنه | ۲۱۰ |
| ۱۲۰ | داسې لور داسې لوونه | ۲۱۳ |
| ۱۲۱ | نه جام نه څادر | ۲۱۷ |
| ۱۲۲ | سیوری (۲) | ۲۱۹ |
| ۱۲۳ | کور مې | ۲۲۳ |
| ۱۲۴ | غزل (۱) | ۲۲۶ |
| ۱۲۵ | رحمان | ۲۲۷ |
| ۱۲۶ | سیند | ۲۳۰ |
| ۱۲۷ | کرونده | ۲۳۱ |
| ۱۲۸ | کچل | ۲۳۳ |
| ۱۲۹ | یو رنګ یو باد | ۲۳۷ |
| ۱۳۰ | غر (۲) | ۲۴۰ |
| ۱۳۱ | غزل او خنجر | ۲۴۲ |
| ۱۳۲ | کجاوې | ۲۴۳ |
| ۱۳۳ | چوپتیا | ۲۴۶ |
| ۱۳۴ | زه هم درځم | ۲۴۷ |
| ۱۳۵ | مور ته مثنوي | ۲۵۴ |
| ۱۳۶ | زېری (۱) | ۲۵۷ |
| ۱۳۷ | نیمګړی غزل | ۲۵۸ |
| ۱۳۸ | شپېلۍ (۱) | ۲۵۹ |
| ۱۳۹ | د زردشت خوب | ۲۶۰ |
| ۱۴۰ | راته وناڅه هنداري | ۲۶۲ |
| ۱۴۱ | درځني لاړم کلیه | ۲۶۴ |
| ۱۴۲ | دروغ | ۲۶۷ |
| ۱۴۳ | غزلبولې | ۲۶۸ |
| ۱۴۴ | سیند ته غزل | ۲۶۹ |
| ۱۴۵ | غزل | ۲۷۰ |
| ۱۴۶ | شپېلۍ (۲) | ۲۷۱ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۴۷ | غوښتنه | ۲۷۲ |
| ۱۴۸ | د وينو غزل | ۲۷۳ |
| ۱۴۹ | غر (۳) | ۲۷۴ |
| ۱۵۰ | غر (۴) | ۲۷۵ |
| ۱۵۱ | آس (۲) | ۲۷۶ |
| ۱۵۲ | خوب | ۲۷۷ |
| ۱۵۳ | غر (۵) | ۲۷۸ |
| ۱۵۴ | دا کښتونه او بادونه | ۲۸۰ |
| ۱۵۵ | غزل | ۲۸۴ |
| ۱۵۶ | اورنۍ پر درمندونو ۲۸۵ | |
| ۱۵۷ | زېږدا | ۲۸۷ |
| ۱۵۸ | زېرى (۲) | ۲۸۸ |
| ۱۵۹ | بې ننبې | ۲۸۹ |
| ۱۶۰ | غر (۶) | ۲۹۰ |
| ۱۶۱ | خوب ته سرود | ۲۹۱ |
| ۱۶۲ | تش صدف | ۲۹۲ |
| ۱۶۳ | جامِ جم | ۲۹۳ |
| ۱۶۴ | له خوشاله تر ننګیاله | ۲۹۴ |
| ۱۶۵ | یا سر نه مري | ۲۹۵ |
| ۱۶۶ | د چغو تصویر | ۲۹۷ |
| ۱۶۷ | غر (۷) | ۲۹۸ |
| ۱۶۸ | خوب په ایینه کې | ۳۰۰ |
| ۱۶۹ | له ابلیس سره | ۳۰۱ |
| ۱۷۰ | هغه غر هغه سیوری | ۳۰۳ |
| ۱۷۱ | وېره مینه | ۳۰۴ |
| ۱۷۲ | مینه او ژوند | ۳۰۵ |
| ۱۷۳ | کوچی په باران کې | ۳۰۷ |
| ۱۷۴ | کله چې لمر ګل وکړي | ۳۰۸ |
| ۱۷۵ | د باغ غزل | ۳۰۹ |
| ۱۷۶ | یو شین انځور | ۳۱۰ |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۷۷ | بیه | ۳۱۱ |
| ۱۷۸ | دوه پرښتې | ۳۱۲ |
| ۱۷۹ | ونه | ۳۱۳ |
| ۱۸۰ | دا جل دا برسات | ۳۱۴ |
| ۱۸۱ | د خوب کوترې | ۳۱۵ |
| ۱۸۲ | مات لمر | ۳۱۷ |
| ۱۸۳ | هغه دار هغه چنار | ۳۱۸ |
| ۱۸۴ | مینې ته | ۳۲۰ |
| ۱۸۵ | شپه | ۳۲۲ |
| ۱۸۶ | غزل | ۳۲۳ |
| ۱۸۷ | ژوند | ۳۲۴ |
| ۱۸۸ | دا هوجرې او دا شملې | ۳۲۵ |
| ۱۸۹ | لیک | ۳۲۶ |
| ۱۹۰ | مړوند | ۳۲۷ |
| ۱۹۱ | د لور غزل | ۳۲۸ |
| ۱۹۲ | غزل | ۳۲۹ |
| ۱۹۳ | زما د چم ونه | ۳۳۰ |
| ۱۹۴ | یو سیوری یو گل | ۳۳۱ |
| ۱۹۵ | گناه | ۳۳۳ |
| ۱۹۶ | کله چې لمر شین شي | ۳۳۵ |
| ۱۹۷ | غزل | ۳۳۸ |
| ۱۹۸ | یو باد یو منصور | ۳۳۹ |
| ۱۹۹ | د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه | ۳۴۰ |

# د دې اثر دويم چاپ

خداى بښلى اسحق ننګيال زمونږ د اوسني شاعرۍ يوه نوميالۍ څېره ده. که مرګي له مونږه ژر نه واى بېل کړى، نو اوس به يې د اسې نور ګڼ نوښتونه ترسره کړي وو. دا ټولګه چې ستاسو په لاس کې ده، د اسحق ننګيال د ټولې شاعرۍ کليات نه دي، خو منتخبات يا تر يوه حده غورچاڼ ورته ويلاى شو. ځکه چې نه يوازې هغه وخت دده اکثره ناچاپ شعرونه په کې خوندي شوي، بلکې له چاپي مجموعو څخه يې هم تر يوه ځايه غورچاڼ شوى او ځينې شعرونه ورسره يوځاى شوي دي، نو ځکه يې د اسحق ننګيال د شاعرۍ منتخبات بللاى شو.




البته د ننګيال په چاپي شعرونو کې نور ډېر ښکلي شعرونه هم شته، خو دا په دې مانا نه ده چې د هغه ټول غوره شعرونه همدې ټولګه کې راټول شوي دي. د المان مېشتې؛ (د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې) کور دې ودان وي، چې هغه وخت يې ژر دا ټولګه چاپ کړه او د مرګ له خطره يې وژغورله. اوس چې د چاپ امکانات تر پخوا زيات شوي او د انټرنټ

ژبو کې د ادبي، علمي او نورو اثارو د خوندي کولو زياته اړتيا ده، نو ځکه مې ضروري وبلله، چې دا اثر يو ځل بيا له سره کمپوز او چاپ کړم. هم به يې د چاپ له لارې خلکو ته ورسوم او هم به يې د انټرنيټ له لارې خلکو ته د لوستو لاره چاره اسانه شي. هيله من يم، چې زموږ نور ليکوال هم خپل او د نورو ليکوالو تېر ارزښتمن اثار يو ځل بيا له سره کمپوز او هم يې بيا چاپ کړي او که د چاپ وس يې نه لري، نو لږ تر لږه خو دې د انټرنيټ ژبو ته وروسپاري، چې هم تري ګټه اخيستنه عامه او اسانه شي او هم د مرګ له خطره وژغورل شي، بيا يې نو که د چاپ هيله او غوښتنه کوله، د چاپ کار به يې هم اسان شي.

په پښتو کې د برېښنايېز کتابتون د چټک بهير د لا چټکۍ او پراختيا په هيله.

پوهندوی محمد اسمعيل يون
ارګ، د جمهوري رياست ودانۍ
۱۳۸۷ل کال، د کب ۲۳مه نېټه

# یادون

د تېرو دوو لسیزو په بهیر کې د پښتو شاعرۍ د څو مطرح څېرو له جملې څخه یو هم خدای بښلی اسحق ننګیال و. دده د ځوانۍ په شېبو ( پنځوسمو کلونو په بهیر ) کې شاعري پیل کړې وه، خو د ژوند تر پایه پورې له هېڅ شي سره دومره خواخوږی او نږدې پاتې نه شو، لکه له خپلې شاعرۍ سره. شعر په حقیقت کې د هغه د ټکلي روح او روان د ټکورولو اغېزمنه وسیله وه. ننګیال لږ تر لږه د خپلې څلوېښت کلنې شاعرۍ په بهیر کې د شاعرۍ دومره پخې تجربې ترلاسه کړې او بیا یې د همدې تجربو له کبله دومره ښکلي شعرونه وزېږول، چې په پښتو شاعرۍ کې د ښکلو غمیو حیثیت لري او کولای شي د ننګیال نوم زموږ د ولس په ذهن کې تر ډېر وخته ژوندی وساتي. شاعر هم د بل هر انسان په شان په ټولنیزو، سیاسي، فکري او نورو مسایلو او چارو کې د بریو ترڅنګ له یو لړ ښویېدنو، تېروتنو، هیلو او نهیلو سره مخامخېږي. کله چې پر ننګیال او دده پر شاعرۍ خبرې کېږي، نو ځینو ته ضرور د هغه د شاعرۍ ترڅنګ، د هغه د ټولنیز، سیاسي او اخلاقي شخصیت انځور هم تر سترګو کېږي. د هنرمند د پېژندنې لپاره خو تر ټولو غوره لاره داده، چې د هغه خپل هنر وکتل شي. د

هنرمند تخليق او زېږونه پخپله د هغه د ظاهري او تر زياتې کچې د باطني شخصيت هنداره ده، نو کله چې د ننګيال پر شخصيت خبرې کېږي، مجبور يو د هغه د شعر نړۍ وګورو او هغه کلمه يوه يوه تر سترګو او فکره تېره کړو، چې د ننګيال له ضميره يې سرچينه اخيستې او بيا د شعر پرښتې په خپلو اوښکو مينځلې او د مينې د نړۍ د ابديت غېږې ته يې سپارلې ده. دا خبره د منلو وړ ده، شاعر تر هغه پورې، چې د فکري بلوغ پړاو ته رسېږي، د فکر ستنې به يې يو او بل فکري لور ته کږېږي. تر هغه پورې چې شاعر خپله ذهني او فکري شتمني بشپړوي، تر هغه وخت پورې يې د فکري ښويېدنو اټکل کېدی شي.

ننګيال د خپلې ځوانۍ په درشل کې پر شاعرۍ پيل وکړ او دا هغه مهال و، چې نور نو ټول هېواد د ((عقيدې د بحران او د معنويت د سقوط)) پر لور روان و. ګڼو فکرونو د بېلابېلو شعارونو تر پردې لاندې د هېواد د ځوان پښت د ذهنونو د خپلونې هڅه کوله. شعارونه يې خواږه وو، خو وروستي عملونه يې ترخه...

د ننګيال د ذهن يوه برخه هم د يو سياسي فکر د جال په کړۍ کې ګير شوه، خو دې فکر لا د شاعرۍ پر بې تکلفې ښکلا خپل سيوری نه و غوړولی، چې د ناورين لومړی پړاو پيل شو. بيا ناورين د پاسه بل ناورين او غميزه راغلل، چې نه يوازې

زموږ د هېواد او ولس د هر ډول شتمنۍ ستنې يې ولړزولې، بلکې له ګڼ شمېر متفکرو مغزونو څخه يې هم لاره ورکه کړه.
دې پړاو ډېر زيات دوام وموند او ننګيال هم په داسې يو جغرافيايي او مسلکي چاپېريال کې ژوند تېراوه، چې هلته د يو داسې فکر واکمني وه، چې د ننګيال د اصلي شاعرۍ له سپېڅلي روح سره يې ټګلورې په ټکر کې و. ننګيال په دې کلونو کې لکه د نورو ګڼو ليکوالو او د فکر د خاوندانو په څېر په داسې يو جال کې راګير و، چې تر دې دمه يې لا نه پوره سترګې رڼې شوې وې او نه يې د شعر د ښاپېرۍ وزرونو خپلواک پروازونه کولای شول. په دې پړاو کې د ننګيال فکري بلوغ هم د خپل پوخوالي پړاو ته رسېدلی نه و، نو ځکه خو يې د هغه وخت په نظمونو (نه په شعرونو) کې يو لړ فکري ښوېېدنې ليدل کېږي، خو پر همدې وخت بيا هم دده په شاعرۍ کې د فکري او انساني بغاوت او د عاطفي سيند د څپو يو پټ شور پروت و او داسې اټکلېده، چې يوه ورځ به دده ددې فکري تېروتنې پر ځای، دده د فکر او ضمير هغه دننني نړۍ راڅرګنده او د خپل شعر ناوې به پرې سينګار کړي.
کله چې شاعر د فکري او شعري بلوغ پر لوري برېمن ګامونه اخلي، نو تېل شوی، تصنعي او ناشعوري اندود يې هم ورو ورو له منځه ځي. کله چې لږ نوره رڼايي هم راغله او په کابل کې د يو زيات شمېر ليکوالو سترګې رڼې شوې، نو هر چا د خپل هېوادني اند اصلي جوهر ميندلو ته هڅه وکړه. ننګيال چې په

پټ ضمیر کې یې همدا راز پټ و ، له ځینو نورو څخه په دې لار کې څو ګامه د مخه شو. جرئت او ربښتینولي یې د دې مرغلرې د ځلونې او خپلونې لپاره امېل کړل. تر ۱۳۲۲-۱۳۲۴ کلونو وروسته وختونو پر مهال په کابل کې د مقاومت د ادبیاتو او د شعر د شعري جوهر د پیاوړتیا لپاره په څرګند ډول هڅې پیل شوې. په همدې کلونو کې په څرګند ډول د شعر او شعار ترمنځ پوله ډاګیزه شوه. د ادبي مبارزې په دې تاوده ډګر کې د هېواد د پیاوړي کره کتونکي او کیسه لیکونکي زرین انځور او بیا د تکړه کره کتونکي لطیف بهاند او نورو زیار او هڅې د یادونې او ستاینې وړ دي. دوی یو زیات شمېر هغه ځوان شاعران چې په شاعرۍ کې یې د ((شعاریت)) پر ځای د ((شعریت)) جوهر پیاوړی بربښېده او یا په کې د شاعرۍ تومنه څرګندېدله، د بېته راوبلل چې له شعارونو څخه خپله لاره بېله کړي. ننګیال یو له هغو ځوانو شاعرانو څخه و، چې تر ټولو لومړی له همدې پیل شوي بهیر سره یو ځای شو. دا د شعر د پوخوالي پر لوري د ننګیال د بریمنو هڅو د پیل کلونه دي. دې بهیر تر ۱۳۷۱ل کال پورې خپل عمر ته دوام ورکړ.

په همدې واټن کې د ننګیال شاعري، دومره خوږه، سپېڅلې او عاطفي شوه، چې د هغه محبوبیت یې د هېواد د یو ستر عاطفي شاعر تر بریده ورساوه. ننګیال د همدې کلونو په بهیر کې د خپلو شعرونو څلور مجموعې (ډالۍ، سپېره ډاګونه او غوړېدلي بزغلي، هغه شپې هغه کلونه او څاڅکي څاڅکي))

چاپ کړل. څرنګه چې دده شعر ورځ پر ورځ د خوږوالي او کره والي پړاوونه وهل، نو په (۷۰) کلونو کې دی د خپلو شعرونو له ځینو چاپي مجموعو، په ځانګړي ډول ((ډالۍ او سپېره ډاګونه او غوړېدلي بزغلي)) څخه څه ناڅه پښېمان و او هغه یې ((شعرونه)) نه ګڼل. د ده شاعرۍ د پرمختګ بهیر دومره ګړندی و، چې د خپلې دمخنۍ شاعرۍ زیاتو شعرونو ته به یې خندل، سره له دې چې دده په شاعرۍ کې د شعر اصلي تومنه او جوهر له پیله ښکاره کېده، خو وروسته وروسته یې د خوږو کلمو یو زرین شال ور په سر کړ. کله چې د ۱۳۷۱ل کال د غويي میاشتې پر ۸مه نېټه په کابل کې د اسلامي انقلاب (!) په نوم یو ستر ستمي ناورین او غمیزه پر افغانانو ور وتپل شول او د هېواد ټول نظام ګډ وډ شو، د ننګیال ژوند او ان دده فرهنګي کارونه هم له سختو ستونزو سره مخامخ شول. د سرو ګولیو په باران کې یې ایله دومره وکړای شول، چې خپله کورنۍ تر لغمانه پورې ورسوي، د کور شته یې ټول تیت و پرک شول او څو ځله په یوه ښار کې له یوه ځایه بل ځای ته مهاجر شو. د کور د کالیو په کیسه کې خو نه و، خو د کتابتون د چور او تالان له غمه یې له سترګو لمبې پورته کېدلې او همدا یې ویل: ((یاره پیرجانه افسوس چې دا کتابونه یې راڅخه نه وای وړي)). د کتابونو غم لا نه و سوړ شوی، چې د یوې درنې ګولۍ ګوزار هم ورته ور ورسېد؛ د توپ یوه ګولۍ یې څنګ ته ولګېده او څو ټوټو یې د بدن ځینې برخې غلبېل کړې. له ناروغۍ لا پوره ښه شوی نه و،

چې بېرته يې د ليکوالو په ټولنه کې خپلې دندې ته ځان ورساوه. شپه او ورځ به همالته په ټولنه کې و. د ليکوالو انجمن يې هم کور و او هم د دندې ځای. څو مياشتې لا وتې نه وې، چې کوم چا ورته کوم پنجشېری ولمساوه. تياره ماښام و، ډيوه يې لا لګولې نه وه، چې د وره له ټک ټک پرته دا شخص له خپلو نورو ملګرو سره يوځای په کوټه ور ننوت. خدای(ج) خبر هغه په کوم فکر کې ډوب و، چې يو ناڅاپه يې پر دوی سترګې ولګېدې. ده لا هغو ته د ناستې او ست هيله لرله، چې يو ګوزار دده ترمخه داسې راورسېد، چې دده يو غوږ يې هم د څه وخت لپاره بې حسه کړ او دا يې ورته وويل چې: ((ما چرم کن استم، سبا تا يې وقت اين اتاقه ايله می کنی، ديګر ده اينجا نبينم ات، ای اتاق را ما برای چرم کنی کار دارم)). څو ورځې د هغه په سترګو کې له اوښکو او په څېره کې يې له يوې سترې نهيلۍ پرته بل څه نه ليدل کېدل او داسې يو حالت ته په هيله و، چې بيا په دې هېواد کې د يو ملي فکر د حکومت وزرې خپرې شي او د يو سوله ييز ژوند وړانګې هره خوا رڼا کړي. کال دوه لا وتې نه وو، چې د طالبانو اسلامي غورځنګ پر کابل سپين بيرغونه ورپول. سهار د وخته، چې لا ډېر خلک د کابل پر فتحې خبر نه وو، زموږ د کور ور يې ټک ټک کړ او په بېړنې ډول يې وويل: ((پيرجانه راوځه، طالبانو کابل نيولی او سقاوي ختمه شوه)). هغه د يو سپين سباوون په هيله و، خو شاعر لکه چې ازلي بدمرغه وي. ننګيال بيا خپلې دندې ته لاړ، خو دا ځل دا دنده بل ډول وه؛

نوي نظام د ليکوالو د ټولنې پخواني تشکيل ته بدلون ورکړ،
خو ننګيال بيا هم په همدې تشکيل کې پاتې شو. دا تشکيل د
دولت لوړ مقام ته د منظورۍ لپاره ولېږل شو. تر هغه وخته چې
د ننګيال د مقررۍ امر راته، په دې کې يوولس مياشتې تېرې
شوې، خو په دې يوولسو مياشتو کې ننګيال هره ورځ د پخوا
په څېر خپله دنده پرمخ وړله، يو ځل بيا يې شپې په همغه ټولنه
کې شوې، چې ده ته ترې د وتلو امر شوی و. ننګيال دنده سرته
رسوله، خو بې معاشه او بې امتيازه. ګڼ شمېر ځوان ليکوال او
شاعران به ترې راتاو وو، خو يو وخت يې اقتصادي حالت
دومره ويجاړ شو، چې د چا خبره د پولۍ ټک ته کېناست. څو
ځله يې دا خبره زما تر غوږ تېره کړه: (( ياره پيرجانه د ماشومانو
غمه مې که نه وای ما په نهره هم شپې سبا کولې، خو له کابله نه
وتلم، کابل خو زما د دردونو، غمونو، برياوو او ماتو کور دی،
زه دا کله يوازې پرېږدم. خو افسوس چې د ماشومانو غم دی )).
بيا به يې يو سوړ اسويلی وکېښ او يوه ترخه موسکا به يې پر
شونډو تېره کړه. نور يې د دندې د ساتلو لپاره پيسې او مالي
لګښت نه درلود، چې دی پرې خپله دنده وساتي. لغمان ته
راغی او بيا يې د پېښور مخه ونيوله. په پېښور کې هم تر ډېرو
انتظارونو او کړاوونو وروسته ورته د بي بي سي د روزنيزې
ډرامې د ليکوال په توګه دنده وسپارل شوه. د کلدارې معاش
مزه يې لا څکلې نه وه، چې د مرګ پرښتو يې روح پر خپلو
وزرونو د ابديت پر لوري يووړ او بيا د بي بي سي راډيو له لارې

داسې يو خبر خپور شو: (( په خواشينۍ سره مو خبر ترلاسه کړی، چې د هېواد نامتو شاعر اسحق ننګيال نن په پېښور کې د **۴۲** کلونو په عمر د زړه د درېدو له کبله په حق ورسېد )). ددې خبر په اورېدو سره د هېواد ټولو فرهنګيانو که په داخل کې وو او که په بهر کې داسې يو دردونکی ټکان وخوړ، چې د ټولو زړونو ته يې د غم لمبې ورسولې. دا د ننګيال د سرګردانه ژوند په باب څو يادونې وې چې دلته يې لنډيز راوړل شو. سره له دې چې ننګيال د ژوند په اوږدو کې له ډول ډول کړاوونو سره مخامخ شوی، خو د تېرو شپږو کلونو کړاوونو هغه دومره ځورولی او ټکلی دی چې نور پر هېڅ وخت هغه دومره روحي، رواني، سياسي، اقتصادي او نور فشارونه نه دي زغملي. د يو ليکوال په اند: (( غوره ادبيات د اختناق په حالت کې رامنځته کېږي )) او شاعر يا ليکوال د اختناق په مقابل کې له ادبياتو څخه د يو روحي او رواني غبرګون په توګه کار اخلي.

هر څومره چې دا فشار او اختناق پياوړی وي، عکس العمل يې هم هماغسې وي. د ننګيال د تېرو شپږو کلونو شاعري د همدغو ډول ډول ظلمونو او اختناق زېږنده ده، نو ځکه پکې سوز او درد دده تر پخوانيو شعرونو څه زيات دی.

د غم او درد په دې تېرو څو کلونو کې د ننګيال د شعر بناپېرۍ لا پسې سينګار شوې ده. دده د فکري تګلوري ليکې او ستنې محکمې شوي او شاعر د شعر د پوخوالي، فکري ثبات او د بشپړو انساني ارزښتونو په پېژندنه او ځلونه کې

بریالی شوی دی. په حقیقت کې د ننګیال د وروستیو کلونو شعرونه د هغه د ښکلې او اوچتې شاعرۍ رنګین او مانیز ګلابونه دي. (ښکاري ته) دده یو ښکلی عاطفي او انساني شعر دی چې ده د **۱۳۶۵**ل کال د غبرګولي د میاشتې پر لومړۍ نېټه لیکلی دی. دې شعر نه یوازې په هېوادنۍ کچه زیات منښت پیدا کړ او ډېر اغېز یې وشینده، بلکې د شمالي کوریا په هېواد کې د ځوانانو د یو نړیوال فیستوال په ترڅ کې، چې د افغاني سندرغاړو له خوا د موسیقۍ په څپو کې په سندریزه بڼه ولوستل شو، نو د ټولو اورېدونکو او مینوالو د منښت وړ وګرځېد او دې شعر هلته لومړی مقام وګټه، خو د ننګیال د شعري بهیر د پرمختګ په وجه، د مړینې پر نږدې وختونو کې هغه دا شعر ((پوره شعر)) نه ګاڼه او ویل یې چې د ((شعاریت)) نښې په کې لیدل کېږي. ننګیال د تېرو اوو اتو کلونو په موده کې ښه ډېر شعرونه ولیکل، خو د ځانګړو مجموعو او یا مجموعې د چاپ امکانات ورته برابر نه شول. له دې کبله د هغه د وروستیو کلونو شاعرۍ د شعر د زیاتو مینوالو او لوستونکو له لیده لرې پاتې شوه. ځکه نو کله چې به کوم لیکوال او یا کره کتونکي دده د شاعرۍ په باب ناسم نظر ورکاوه، نو دی به ډېر په قهرېده او ویل به یې: ((دی نو زما له اوسنۍ شاعرۍ څخه څه خبر دی هغه خو ټوله له ما سره په کتابچو کې پرته ده...)).

د ده یوه ستره هیله همدا وه، چې د خپلو شعرونو ټولې مجموعې چاپ او په خپلو سترګو ووینې. د ننګیال په ژوند خو

د هغه هیله پوره نه شوه، خو دادی د هغه تر مړینې وروسته، په جرمني کې د افغان فرهنګیانو او فرهنګپالو په مالي مرسته د هغه دا ارمان پوره شو. ما چې کله د هغه د ناچاپه شعري مجموعو د چاپ پر کار پیل وکړ، نو ننګیال مې یوه شپه په خوب کې ولید، خوله یې له خندا شنه وه او همدا سې په خوشالۍ یې راته وویل: ((پیرجانه! زما مجموعې چاپېږي؟ ښشکه والله..)) ما ورته ویل هو ستا ټول شعرونه چاپېږي. په هغه شپه له خوبه راویښ شوم، تر سهاره خوب رانغی، لاټین مې ولګاوه او د ننګیال په چورت کې لاړم- یو ځل مې د هغه ټولې خاطرې تر نظر تېرې شوې.

کله چې مې د هغه د شعرونو توري لوستل، نو په هر توري، هر شعر او د شعر په هره پاڼه کې راته د ننګیال تصویر تر سترګو سترګو کېده. زه ددې شعرونو تر پایه په دې پوه نه شوم، چې زه په کوم حالت کې یم، لکه یو څوک چې په خلا کې روان وي.

د ننګیال د وروستیو کلونو، فکري او عاطفي شخصیت کټ مټ د هغه د اوسنیو شعرونو له مانیزې او عاطفي خوا سره منطبق و. هره پاڼه کې ننګیال و، په هر توري کې ننګیال و، دا هغه ننګیال نه و، چې د خپلې شاعرۍ په پیل کې او یا تر هغه وروسته د څو کلونو په شاعرۍ کې ځلېده. دلته یو بېل ننګیال و. هغه د خپلې مینې او عاطفي پر سپین آس سور او د ښاپېریو ښار ته روان و او لکه له هغه ځایه یې د خپل ستي او ټپي ولس د درملونې لپاره د ښکلاوو ټکورونه راوړل. ما هره شېبه له

ننګیال سره خبرې کولې او دومره خبرې، چې د هغه په ژوند به مې ورسره نه وي کړې او کېدی شي لوستونکي هم زما پر برخلیک اخته شي.

خو ددې سوچونو او فکرونو په منځ کې خوشاله په دې وم، چې د هغه د ټولو ناچاپه شعرونو غټ جونګ چاپېږي. کله چې دا مجموعه چاپ شوه، نو زه به یې د الینګار د ښکلې شاعرانه درې د بسرام په کلي کې د ننګیال پر قبر کېدم او مبارکي به ورته ورکړم. د هغه روح به څومره خوشاله شي او هغه ارمان چې دده پر ژوند پوره نه شو، وروسته تر مرګه به پوره شي. په همدې هیله مې د هغه شعري مجموعې چې په کور کې یې وې ترلاسه کړې. هغه یوه شعري مجموعه چې کاپي یې ده سره په کور کې وه انځور صېب ته هم لېږلې وه، هغه هم ترلاسه شوه. دا شعرونه چې ما وکتل زما په نظر کم ښکاره شول، ځکه ننګیال چې به کوم شعر ولیکه، نو د نورو شاعرانو په شان به یې خپلو ملګرو ته ضرور اوراوه.

حفیظ الله ګردش، صدیق الله بدر، نورمحمد لاهو او عبدالغفور لېوال ته مو د ننګیال صېب د هغو شعرونو په باب چې په دې مجموعو کې نه وو او په ځینو اخبارونو کې په متفرقه ډول چاپ شوي وو، وویل موږ ټولو په اخبارونو او نورو خپرونو کې د ننګیال صېب هغه شعرونه پیدا کړل، چې په تیت و پرک ډول چاپ شوي وو او په دې مجموعو کې نه وو راغلي، بیا هم ما ته د خپل اټکل له مخې دا شعرونه پوره نه برېښېدل. د

کتاب د تورو لوستل بشپړېدو ته نږدې شوي وو، چې يو ځل بيا په لغمان کې د ننګيال صيب کور ته لاړم. د هغه مشر زوی (ارش) ته مې د ننګيال صيب د يو داسې عکس يادونه وکړه، چې تراوسه په خپرونو کې چاپ شوی نه وي او هم مې ورته وويل چې د ننګيال صيب کتابونه او پاڼې يو ځل بيا وګوري، ګوندې څه شعرونه يې ترلاسه شي. هغه ماته وويل: ((موږ څو ځله د خپل پلار کتابونه او يادښتونه واړول راواړول، څه چې وو هغه مو تاسو ته درکړل، خو موږ به يو ځل بيا هم ټول کور وګورو)). په پېښور کې د مجموعې کار د بشپړېدو په وروستيو شېبو کې و، چې د ننګيال صيب زوی (ارش) په ډېرې بېړې له لغمان نه ځان راورساوه او د ننګيال د شعرونو يوه بله کتابچه يې هم راوړه. ما چې د ننګيال صيب دا شعرونه وکتل، دومره خوشاله شوم، چې د ټولو ستړياوو بار مې يو ځل له اوږو لرې شو. بيا مې دا ټولې کتابچې له اخبارونو او خپرونو او په متفرقه ډول راټول شويو شعرونو سره پرتله کړې، تکراري شعرونه مې ترې لرې کړل، دغه راز مې دده له دوو چاپ شويو شعري مجموعو (هغه شېبې هغه کلونه او ځاځکي ځاځکي) څخه يو شمېر شعرونه ورسره يوځای کړل. اوس تر زياته بريده پر دې باوري يم، چې د ننګيال نور شعرونه به نه وي پاتې. ده له خپل ناوړلي (نامنظم) ژوند دود سره سره د خپلو شعرونو د ثبت انتظام ته ډېره پاملرنه کړې وه. له دې څخه دا څرګندېږي، چې ننګيال تر خپل ځاني ژونده هم، له شعر سره ډېره مينه درلوده،

ځکه چې هغه د خپل ژوند د ښېرازۍ مېړنی نه و ، خو د ښکلې شعري شتمنۍ څښتن و. ده انځور صېب ته د يو ليک په ترځ کې ليکلي وو: (( ځو شعرونه مې له ((سپنتا )) سپين ږيري سره پاتې شول او له ماسره يې او س کوم نقل نه شته، هغه غوښتل څه پرې وليکي، خو حالاتو وخت ورنه کړ، که چېرې مې بيا وموندل نو در وبه يې لېږم )). له ((سپين ږيري )) څخه يې مقصد (ښاغلی سليمان لايق ) دی چې ننګيال ورسره د شاعرۍ ښه ملګرتيا لرله. دا چې دا شعرونه به پياوړي شاعر سليمان لايق سره وي او که نه؟ زه خبر نه يم. د ننګيال صېب د شعرونو د کتابچو او د شعرونو د نېټه ليک له تسلسل نه دا سې ښکاري چې د ننګيال صېب نور شعرونه به نه وي پاتې. دا ليک هغه انځور صېب ته له کابل نه د ۱۳۷۱ل کال د زمري پر ۱۲ نېټه ليکلی و. تر هغه وروسته د ځو کلونو په ترځ کې هغه خپل شعرونه له سره په نويو کتابچو کې ليکلي وو او د هغو شعرونو بل نقل هم ورسره موجود و ، چې انځور صېب ته يې لېږلي وو ، نو کله چې انځور صېب ته د لېږلو شعرونو نقل وروسته ترتيب شوی، نو دغه راز به ښاغلي سليمان لايق ته ورکړل شوي شعرونه هم بيا له سره په کتابچو کې ليکل شوي وي. بيا هم که ښاغلي لايق سره دا شعرونه موجود وي او هغه ددې مجموعې له شعرونو سره پرتله کړي او کوم چې په دې مجموعه کې راغلي نه وي، ترچاپ وروسته د هغو د خوندي کولو هڅه وشي، نو دا به پښتو ادب ته يو ډېر ګټور کار وي.

د ننګيال دا مجموعه (سيندونه هم مري) د هغه د (ښېرې په مالت کې، نه جام نه څادر، دا جل دا برسات، سيندونه هم مري، ځينې متفرقه شعرونو او د چاپ شويو دوو مجموعو هغه شېبې هغه کلونه او څاڅکي څاڅکي) له څو شعرونو څخه جوړه ده. ددې مجموعې چاپ د پښتو شعر په ځانګړې ډول ازاد شعر په برخه کې يوه ډېره په زړه پورې، درنه او ارزښتمنه ډالۍ ده. خو له دې درنې ډالۍ سره سره به مو دا ارمان تل په زړه کې پاتې وي چې: ((کاشکې ننګيال ژوندی وای چې دا سې نورې ښکلې او ارزښتمنې ډالۍ يې خپلې ژبې ته وړاندې کړې وای)). ننګيال ته دعاګانې.

په مينه او درناوي
محمد اسمعيل يون
۱۳۷۷ل کال- ليندۍ
پېښور- پښتونخوا

سریزه:

# اسحق ننګیال

## د پښتو د نوي شعري بهیر په یون کې

د پښتو د معاصرې او نوې شاعرۍ په یون کې ، اسحق ننګیال کله ځوک هېرولی شي ! ننګیال د پښتو د نوي شعري بهیر د ښایست یوه ښه وه، ننګیال زموږ د شعر د نوي کتاب یوه زرینه پاڼه وه، ننګیال هغه فقیر، هغه ملنګ شاعر و، چې په همدغه لنډ او غم ځپلي عمر کې یې هم موږ ته د هنرونو د ښایستونو دومره شته راپرېښودل، چې زموږ نوی ادبي بهیر پرې ویاړ کولای شي، خو که هغه مرګي دا سې بې وخته، یو ناڅاپي او په ډېره بېړه له موږ نه وای اخیستی، په دې کې هېڅ شک نه شته، چې زموږ د ولس ادبي هنري پانګه به یې نوره هم درنه کړې او ښکلې کړې وای.

ننګیال د پښتو په اوسني شعري یون کې په عمومي توګه، د یولاس دګوتو د شمېر له نومیالیو او وتلیو شاعرانو څخه ګڼلی شو او که دافغانستان د پښتو د نوي نسل د شعر په حدودو کې، یوازې دوه کسه هم تر نورو زیات ځلېدونکي، پیاوړي او د پاملرنې وړ وي، یو یې اسحق ننګیال دی؛ دا یو

ستر ویارٍ دی، یو لوی ارزښت دی، یو خورا مهم هنري ادبي دریځ دی.
د ننګیال شعر، په افغانستان کې په ډېرو کړکېچنو، کړلېچنو او غمجنو شېبو کې اوج او شهرت ته ورسېد. سره له دې، چې هغه د لمریزو پنځوسمو کلونو له پیلامې څخه شاعري راپیل کړې ده، خو د اوج کلونه یې د ثور له غمیزې او بیا د روسي سرو یرغلګرو، تر یرغل وروسته، را رسېږي، دا هغه کلونه دي، چې په شروع کې یې د افغانستان په شاعرۍ کې د هنري-ادبي ارزښتونو پرځای، د نظمونو او شعارونو بازار ښه ګرم دی او د غو وچو شعارونو او نظمونو پر ورانـدې د هنـرې-شعري ارزښتونو لپاره هلې ځلې، نه یوازې دا چې یوه لوړه هنري ادبي هڅه وه؛ بلکې د هغه وخت د حالاتو په رڼا کې په یو ډول سیاسي مبارزه هم بدله شوې وه. د سرو نظمونو او سرو شعارونو پلویان د ګوندي او دولتي واکمنۍ د فرمانونو او دستورونو ناظمان وو او یوازې پر همدغه اړخ یې ټینګار کاوه، خو د دوی پر وړاندې د هنري-ادبي ارزښتونو لپاره هلې ځلې نه یوازې دا چې د یو هنري تقدس لپاره ټینګار و، دګوندي- دولتي دستورونو او فرمانونو پرووړاندې یې، د یو ټولنیز- سیاسي (ملي) ملي تقدس په توګه هم ارزښت لاره، ننګیال، سره له دې چې د شعري ژوند په څولومړیو کلونو کې یې د شعارونو او نظمونو ځینې بېلګې هم وړاندې کړې دي، خو له شعارونو او نظمونو څخه د شعري-هنري ښکلاوو پر

لوري د هغه د وربښمينې لارې سفر وروسته، که هغه د مينې شعر ليکلی، که يې کومه عاطفي شېبه انځور کړې او که يې کوم بشپړ سياسي شعر ليکلی دي، تر ډېره زياته حده يې له هنري-ادبي ځانګړنو او ارزښتونو سره نغاړلي دي.

اسحق ننګيال په وروستيو شلو کلونو کې، د افغانستان د شعري بهير له څو فوق العاده او استثنايي شخصيتونو څخه دی. که د وروستيو شلو خونړيو کلونو، غمجنو بهيرونو، موږ ته کومه ښه ډالۍ هم راکړې وي، ښايي يوه يې د ننګيال په څېر ديو شاعر ظهور وي، چې هغه يې هم يوازې يوه ورځ ورسته ببرته له موږه واخيست. داسې چې که د دغې خونړۍ غميزې پيلامه د **۱۳۵۷**ل کال د غويي له اوومې پيل شي، نو ننګيال د **۱۳۷۷**ل کال د غويي پر اتمه ځوانيمرګ کېږي.

دلته به زه، پر هغو ټکو، هغو ارزښتونو څو خبرې وکړم، چې اسحق ننګيال يې، زموږ په اوسني شعري بهير کې، تر نورو ډېرو، زيات ځلولی او د پاملرنې وړ کړی دی.

**لومړي:** د افغانستان د وروستنۍ شل کلنې غميزې انځورګري، ننګيال تر بل هرچا څخه په ښه ژوره، هر اړخيزه او شاعرانه توګه کړې ده. هغه غميزه چې د ثور له اوومې پيل کېږي، د جدي پر شپږمه او ج ته رسي او څوارلس کاله وروسته د ثور پر اتمه يو بل نوی غمجن پړاو ته ور داخلېږي او د ننګيال تر مرګه هم لا دغه غميزه پای ته نه رسېږي، ننګيال

ددغې غمیزې په زړه کې پروت دی. همدغه غمیزه د ننګیال زړه خوري او ځاځکي ځاځکي یې د ویرژړلیو شعرونو په توګه څڅوي، ننګیال د همدغې شلکلنې غمیزې ډېر پیاوړی انځورګر شاعر دی. هغه د غم ددغو کلونو ډېره زیاته برخه د افغانستان په زړه، کابل کې، تېروي او د ټولو غمجنو شېبو شاهد پاتې کېږي. دغه شېبې که غمګینې او له ویر او وینو ډکې دي، خو شاعرانه کېږي. ننګیال د همداسې یو غمګین برخلیک شاعر دی او ځکه خو هغه د افغانستان د شلکلنې غمیزې د ویناوال په توګه راڅرګندېږي.

دماښام ډمې مې بولي په ژوندون د مرګ بدلې
ای د ویر پېغلې نغمه شه چې د شپو د جبل بندي یم
راته وژني خوب په ګوتو د شوګیرپیغمبر راغی
مه ځه راستنه شه چې د شپو د جبل بندي یم
غواړي ځان ته مې سجده کړي، زه په ټیټ سربلد نه یم
دغیرت ناوې شمله شه چې د شپو دجبل بندي یم...(۱)

او یا داچې:

زما د کور هغه وړه هغه بېباکه فضا
زما د کور هغه زاړه هغه ختین بامونه
چې ډو ببدل به دماشومو خنداګانو سین کې
زما د کور وړه باغچه کې د سپرلي ښاپېرۍ
د سرو ګلانو د شو پاڼو جنتي تخت نه یې
چې شنو موسکاوو کې ډک جام د بدمستۍ راکاوه

زما د کلي هغه لويې، ها پراخې کوڅې
زما د کلي هغه شنه، هغه سمسور باغونه
زمونږ د نجونو حرم
زمونږ د سپين ږيرو د ېرې
زمونږ د سترو کروندګرو د غرمو خپرې
د مرګ په ولو زانګې
اسمان د لويو خړو وربځو او باروتو لوګی
ځمکه د وينو او د مړو له کوپړيو ډکه
انسان د وير او د دردونو او مرګونو کوربه
کور مې د مړاوو بېګناهو اميدو هديره
دنيا مو ټوله نړوونکو توپانو نيولې
نو عقله !
نو عقله ای د توپانو دغلو په لاس تښتول شوې ببړۍ
وايه چې چېرته لاړ شم؟
او پردې ځان څه وکړم؟(۲)

او:

ته راته ګورې چې محل مې له کارغانو ډک شو
او په ويالو کې د هيليو بچي وسوزېدل !
او زمونږ د کلي ميندې
د ميلاد شپو کې ((بې لاسو او پښو بچيان زېږوي))
ته راته ګورې؟
ته راته ګورې چې مې ټول کلی چاړه دی؟

خلک په نوکو او برچو د یو بل سترګې باسي
او د مالت نجونې
په خپلو تورو تورو څیو کې ځوزان ټک وهي
آه،
آه نازولې سپوږمۍ !
آه درنا مورې !(۳)

ننګیال، په کابل کې د تنظیمي حکومت د ټوپکوالو د ځلورنیمو کلونو د وحشت تر ټولو او څار شاهد شاعر هم دی. د ننګیال د ناچاپې شاعرۍ زیاتره برخه د دغو وحشتونو شاعرانه انځورګرۍ ته ځانګړې شوې ده.

هغه د بدمرغیو په دغو بهیرونو کې د کابل ((مینې)) ته هم وایي، چې نور د رځینې شرمېږم. د ((انسان)) په نوم له دغو ((انساني)) اعمالو شرمېږي او د ((افغان)) په نوم له دغو ((افغاني ضد)) اعمالو:

مینې له شرمه در کتلای نه شم
نور مو د کلي د ګلونو په کاله کې
پېغلتوب د ګل غوټیو چېرته هم نشته
او ابراهیم د خپلې ښکلې نازولې د جمال او د عفت
د لوټ کوڅو کې د غارت کیسې ته خوب وړی دی
نور مو د باغ نجونو ته ((هسکې)) او ((کړې)) شملې د ښمنې ښکاري
مینې له شرمه درکتلای نه شم (۴)

او لکه چې هغه د ((کلي)) په نوم شعر په یوه برخه کې وايي:

نه پوهېږم، نه پوهېږم
ای د کلي مازیګره !
ها زموږ د کلي چم کې
هغه سپینه کېږدۍ څه شوه
هغه شنې څېرې څه شوې
ها لوګرې جېنۍ چېرې؟

❋ ❋ ❋

تاته یا د شي مازیګره !
هغه شنې د برې د کلي
په کې هسک د شملو غرونه
په کې وربځې د چلمو

❋ ❋ ❋

نه نه وران دی
کلی وران دی
یوه ځاله په کې نه شته
ها د ښکلو توتکیو
یو نغری هم اباد نه دی
د ابیو د لاس ننبه

❋ ❋ ❋

لښتې وچ شول
ویالې ورانې
سین د تورو کاڼو غرشو

اوس حیران یم چې د کلي
دا هیلۍ به چېرته لامبي.(**۵**)
ننګیال په خپلو دغه ډول شعرونو کې د جنګ هغه ربښتینې وحشي څېره ډېره ښه تصویر کړې ده، چې زموږ وطن خوري، زموږ ولس وژني او زموږ د هېواد ټولو ارزښتونو ته ګواښونه کوي. ننګیال د دغو غمیزو په انځورګرۍ کې شاعرانه او هنري ارزښتونو ته بشپړه پاملرنه کړې ده او هېڅکله یې د ښکاره، بربنډ او څرګندو شعاروي خبرو په څېر دغه مسایل نه دي راوړي، بلکې له شاعرانه ښکلاوو سره یې یو ځای کړي دي او همدا د ننګیال د دغه ډول شعرونو دارزښت بنسټیز ټکی دی، همدغه خبره ده، چې شعر له عادي او خبري مسایلو راجلا کوي.
**دویم:** د ننګیال د شاعرۍ یوه بله د ارزښت وړ ځانګړنه داده، چې د هغه شعرونه له عاطفي شېبو ډک دي. د هغه شعرونه لکه د عاطفې سیند، لکه د عاطفې سمندر، داسې دي. د هغه په زیاترو شعرونو کې د یو خواخوږي، د یو زړه سواند ((انسان)) عاطفه په خپل اوج کې ځان راڅرګندوي. ډېرو شاعرانو او شعرپوهانو په شعر کې د ژورې عاطفې پر شته والي ټینګار کړی دی. عاطفه او په عمومي توګه احساسات د شاعرۍ له اساسي برخو څخه ګڼل کېږي او په دې کې د پاملرنې وړ خبره داده، چې څنګه دغه عواطف په شعر کې د انتقال ځواک

پیدا کړي؟ د ننګیال په شاعرۍ کې دغه ځواک وینو. د ((دا کلی مه ورانوئ)) د شعر یوې کوچنۍ برخې ته پاملرنه کوو:

دا کلی مه ورانوئ!
ګورئ هلته چې لکه زرکې زموږ د کلي نجونې
ګورئ چې هلته د بامو پر سر نورسې پېغلې
کتار، کتار
دلمر تر وړانګو خپل پیکي جوړوي
او په مینو ژبو
د پېغلتوب غوږ کې د ځوان هوس سندرې بولي
دا کلی مه ورانوئ... (۲)

ننګیال د دغه ډول عواطفو په باب، له ((ډیوي)) سره په یوه مرکه کې ویلي وو: ((هغه چې ډېر عاطفي نه وي، زما په اند نه شي کېدلی، چې ډېر ښه شاعر شي. د خپل ژوند کیسه درته کوم: د اوړي یوه توده ورځ وه، په دېره کې ناست وم. یوازې او تنها له خپلو سوچونو سره لوبېدم، چې یو ماشوم چې په یوه لاس کې یې مړ ژواندی چرګ او په بل لاس کې یې تېره چاړه وه، راته راغی چې چرګ یې حلال کړم. نه مې غوښتل چې خپل لاسونه په وینو سره کړم، خو چرګ ناروغه و، مړه کېده او هلک زارۍ راته کولې، چرګ مې حلال کړ، خو اوس چې له هغې ورځې نه درې کاله تېر دي، هغه چرګ مې خوب ته راځي، وسله وال وي، په ټوپک مې ولي، چاړه ورسره وي، حلالوي مې، په اوونۍ کې یو ځل دا سې خوب حتماً وینم...))(۷)

د ننګيال د عاطفي شاعرۍ يوه ډېره مشهوره بېلګه ((ښکاري ته)) د هغه شعر دي:

... اى ښکاري اشنا درته سلام کوم
پربږده چې دا سپينې مرغۍ والوزي
لاړې شي جوړې جوړې ګلونه شي
ښکلي شي، ښايسته شي امېلونه شي
واخلي په وزرو کې تنکي بچي
وموښي سينو کې ګلابي بچي
سپينې سرې منښو کې زرکني بچي
پام کوه
پام کوه ماشې ته ګوتې مه وروړه (٨)

د اسحق ننګيال په شعر کې دغه ډول عواطف، د هغو احساساتو په بڼه نه دي، چې ((شبېه يي)) او ((موقتي)) ارزښت ولري، د ننګيال عواطف د يو شاعرانه زړه د ډېرې ژورې (انساني) مينې ځرګندوى دي. لکه چې په همدغو عواطفو کې د شاعر زړه هم ځاځکي ځاځکي راڅڅېده او ځکه خو يې داسې ژر هغه شاعر زړه ودرېد.

د رېيم: کوم بل ټکى چې د ننګيال په شاعرۍ کې د پام وړ دى، هغه د اوچت شاعرانه تخيل لرل، د نويو مفاهيمو او شاعرانه ترکيبونو جوړول او د ښکليو شاعرانه تصويرونو نوښت دى. هغه په شعر کې له دغو نويو شاعرانه ترکيبونو، ژبې ته يوه نوې ښکلا وربښي او د نويو تصويرونو له لارې زموږ د

معاصري شاعرۍ تابلوګاني رنګينوي او دپاملرنې وړ يې ګرځوي. کله کله خو يې په شاعرۍ کې د اسطورو راوړنه او پر ځای کارونه هم دهېرولو نه ده او دغه راز يې شاعرانه او هنري سمبولونو ته غور په کار دی.
دغه راز مور وينو، چې د اسحق ننګيال د شاعرۍ دغه ګڼې ښکلاوې او دغه د نوي شاعرۍ بنسټيز ارزښتونه هم د هغه په غزليزه شاعرۍ کې ځان راڅرګندوي او هم په ازاده شاعرۍ کې. لومړی يې د ښکلي او روان بيان، خو اوچت تخيل ننداره، په دغو غزليزو بېلګو کې ګورو:

ويلي ويلي په درګاه کې د صنم مرم
پر سرو شونډو د ګلاب لکه شبنم مرم
د سلګو مزل مې خدايه چې لنډ نه کړې
ستړی ستړی يې په هر ګام او قدم مرم
پانه نه يم چې په تش لوګي لمبه شم
لکه شمع تر سبا قلم قلم مرم
وچو شونډو ته مې ست د خمار څه کړې
ساقي! دلته چې په څنګ کې د حرم مرم
د ځوانۍ شپې مې جنت ته نيسه مه ږدئ
زه سرکښه په لمبو د جهنم مرم (۹)

او:

رونې مـې مسـتقبل شـو خـو تيـارو ونيـو
رب د پسـرليو مـې اغـزو ونيـو
مـاوي چـې مړونـد بـه يـې زر پوشـه شـي
مـات پـه کـې بنگـړي شـول هتکـړو ونيـو
چېرتـه يوسـم جـام د شـرابي عقـل
ځـای د مېکـدو چـې مـې کعبـو ونيـو
نـور مـې نـو اشـنا پـه پلـو مـه راځـه
دلتـه هـر قـدم قصـابخانو ونيـو.. (۱۰)

او:

بيـا رانغلـې لېمـو تـه پـه پسـتو پسـتو وزرونـو
زمـا د خـوب کـوترې سـتا دسـترگو لـه بـامونو
څلـو وهلـي گـوره څـه خـواره واره پـرې گرځـي
د شـونډو بوراگـان مـې سـتا د شـونډو پرگلونـو
په خپل شرنگ به ويده شمه په خپل شرنگ به روا ينس شم
بنگړي مې کړه د لېچو ، گرځوه مې په لاسونو

زما مينه يو سيند دی او ستا زړه ورکوټی کلی
دا سـيند چېرتـه جانـان اوکېـږدي د حبـابونو
لا ښکاري چې موده د لېونتوب مې پوره نه ده
يو څوک راته ناري وهي د غرونو له سرونو (۱۱)

همدارنگـه د ننگيـال پـه ازادي شـاعرۍ کـې د نويـو شـاعرانه مفـاهيمو او ترکيبونـو او دغـه راز د شـاعرانه سمبولونو سيند

بهانـد دی. د ننګيـال شـاعري، د پښـتو د ازادې شـاعرۍ پـه عمومي مطالعه کې هم د پوره پاملرنې وړ ده. پـه پښـتو ازاده شاعرۍ کې د ننګيال هستونې ښکلې او پياوړې دي.

دا د سپرلي د شينکي باد وزرونه چا تړلي؟
چې د تيارو پـه جهنم کې د اغزيو لښکر
د بلاربو بوټو له شيدو نه ډک تيونه شکوي
او د نرګسو دا موسکې موسکې رنګينې سترګې
د لاس پـه نوکو باسي...(۱۲)

او د يو بل ازاد شعر د بېلګې يوې برخې ته يې هم پاملرنه کوو:

((... بېګاه شپونکي باد ستا د څېو له غرو راغی
پـه پګړۍ کې يو ټکی د يو ګل نه و
له نرۍ ملا نه يې د لمرهغه زرين ومستني نه وراتاو
چايې پـه تشې او ريښې ريښې بخخۍ يو د سنورو نارنج نه و ايښی
نور مې پـه کلي کې باد نه چلېږي، باد هم مساپر شو ورنه
څومره تنها
څومره يو ازې ده
زما د کلي ښکلې نازولې سپوږمۍ
بېګاه مې خوب ليدلی:
زموږ د کلي د چنارو تر شنو سيورو لاندې
پرهغو نويو پلنګي کټونو
يو څو کارغان ناست دي
رېلی دلښتو وروي پرې، ګډوي ځانته زموږ د کلي سپينې هېلې

زموږ د کلي په دېره کې د چلمو د کړو وړو لوګيو پر ځای
خورې ورې دي د ښايسته ښايسته هيليو تکې سرې د پېغلتوب وينې
کلي کې يو سېوری د برېتوا و يو شرنګ د سپينو تورو نه شته
رښتيا !
د کلي په دېره کې
د زلميو څېرو
د اتڼ هغه سکڼې ماښام در ياد شي که نه؟... (۱۳)

**څلورم:** د اسحق ننګيال په شاعرۍ کې ملنګي، شاعرانه لېونتوب، باغيتوب او ياغيتوب ګڼې ښېلګې هم راترسترګو کېږي. د غه شاعرانه لېونتوب او ياغيتوب، د هغه شاعرۍ ته يو جلا رنګ ورکړی دی. د مستې او باغي شاعرۍ نمونې يې د لېونېو شاعرانه ولولو څرګندونه کوي:

-ملا څه مې د ورځې په دې ډکو کاسو ولې
د حورو لېونيه ماښامونه خومې خپل دي (۱۴)
دا زه د توبو نه يم که توبو کې اثر نه شته؛
توبې مې زړه کې سوځي که توبو ته مې زړه سوځي (۱۵)

ښکل کړلې ذاهدو د ساقي ګوتې
ماتې شوې توبې په هوا والوتې
دې بحرنو شي. خو دې حيران کړمه
شېخه زنګېدې په هوا والوتې

تـــاچې کـــړې ښـــکاره لـــه لـــو پټې ســـترګې
خلکـــو نـــه شـــملې پـــه هـــوا والـــوتې...(۱۲)

د شاعر دغه ډول شعرونه کله کله د پښتني عنعنوي، کلتوري، اخلاقي ارزښتونو په پام کې ساتلو سره ، تر هغو هم پښه اړوي او د نمونې پـه ډول، کلـه چې د ((ګنـاه)) پـه نـوم شـعر داسې پيلوي:
ځو مره نېکمرغه يم ګناه کومه
تمامه ورځ ورېځې د باد له ژرندو باسم
او د لمر په تناره کې پسرلي ته ترې ډوډۍ پخوم
ځو مره نېکمرغه يم ګناه کومه...(۱۷)
نوشعر په داسې ډول پای تـه رسوي، چې د کلتـوري، عنعنـوي او اخلاقـي ټکـو پـه پـام کـې سـاتلو سـره يـې يـو لـوی شـاعرانه لېونتوب او ياغيتوب ګڼلی شو. د داسې څرګند او بربنډ بيـان بېلګې به په پښتو شاعرۍ کې ډېرې لږې وي.
د ننګيال بې وخته مړينه، د پښتو پر نوي شعري بهير، د تندر له ګوزاره کمه نه وه او دغه ګوزار د پښتو يو ننګيال، يو بريال شاعر له دغه بهيره واخيست او دومره په بېړه لکه چې ترې پټ کړی يې وي. لکـه تښـتولی چې يـې وي. ننګيـال، يـو ګـل و، يـو ملنګ و. دغـه ګـل لا بشـپړ غوړېدلی هم نه و، چې پـاڼې پـاڼې شـو، دغـه ملنـګ لا د خپـل شـعر کچکـول د فطـرت د ښـکلا او

رنګينو له ډاليو بشپړ نه و را ډک کړي، چې کچکول تري چا
پټ کړ.
ننګيال به د خپلو شعرونو په کرښه کرښه کې ژوندی وي، خو
کاشکې هغه د پښتو د شعر د لا ښکلې کېدونکې ناوې د
سينګار لپاره لږ څه نور وخت هم لرلای.

**دا مجموعه:**

زموږ نوميالي شاعر اسحق ننګيال د روان کال ۱۳۷۷ل کال د
غويي (ثور) پر اتمه (۱۹۹۸م د اپريل ۲۸مه) د افغانستان د
معاصر تاريخ پر دغه توره ورځ له نړۍ سترګې پټې کړې. د هغه
په مرګ د افغانستان ټولې ادبي او کلتوري کړۍ غمجنې
شوې شوې. د هېواد په داخل او د نړۍ په ګوټ ګوټ کې
افغانانو د هغه يادونه ولمانځل او د غونډو او محافلو په لړ
کې يې د هغه پر مرګ خپله غمشريکي څرګنده کړه.
په همدغه لړ کې د ۱۳۷۷ل کال د غبرګولي پر نهمه د ۱۹۹۸م د
مې پر دېرشمه د جرمني د کولن ښار کې ((د افغانستان د
کلتوري ودې ټولنې)) له خوا د هغه په باب يوه درنه ياد غونډه
جوړه شوې وه. ياد شوې غونډه کې د شاعر پر ژوند، شخصيت
او اثارو ګڼ شمېر مقالې ولوستل شوې او يو شمېر
شاعرانو د هغه پر بې وخته مړينه د اوښکو څاڅکي توی کړل.
په همدغه غونډه کې د ((د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې))
غړيو وپتېيله، چې د ارواښاد ننګيال د ناچاپو شعرونو

مجموعه د همدې ټولنې په لګښت چاپ شي او د همغه نېک کار لپاره پر هماغه ورځ يو شمېر دوستانو يوولس سوه مارکه سره راټول کړل.
څو کاله پخوا ګران تنګيال د خپلو ناچاپو شعرونو دوه کوچنۍ مجموعې زما په نوم له کابله پېښور ته رالېږلې وې او ورسره يې زما په نوم دغه ليک هم د خپلې مجموعې په پيل کې ليکلی و:
((ډېر ګران انځور صېب:
هيله ده، چې ژوندډېر درته بد نه وي او لکه چې پر موږ چې يې وکړل، هاسې ميرځي يې درسره نه وي کړې. زموږ خو ژوند څه ژوند نه دی او بايد همداسې هم وي، ځکه زما په اند ژوند پوچ دی-ژوند رنځ دی، ژوند قاتل دی او ژوند له ژونده د غچ اخيستنه ده. حتا ډېر ښه ژوند هم د شرابو پياله ده، چې د پېغمبرانو له ستوني نه تېرېږي. څښل، خوړل، کارکول او ويدېدل، دا دي هغه کلمې چې خدای(ج) د ژوند په نامه دژونديو په ځوليو کې اچولي دي او زما ژوند خو تاته تر هر چا ښه څرګند دی، ټول عمر مې له دوو نومونو سره ژوند وکړ:
ښيښه او شعر. سره مو وژړلې او پر ژوند مو ناړې تو کړې.
ښيښه يې رانه واخيسته او اوس زه او شعر دوه په دوه سره ژوند کوو. ډېر کله هغه له ما مرور وي او زه له هغه.
((دربېمګړی)) نه شته، چې سره مو پخلا کړي او که سره پخلا

هم یو هغه تېره لېونی پخلاینه نه ده، ټوله ورځ راته د عقل او منطق ناندری غږوي...

ښیښنه خو لاړه مګر شعر تر اوسه راسره شه. د وخت لوبې مې وېروي، چې له ده هم خلاص نه شم. پخوا به مو هره ورځ د مرګ نندارې کوله، اوس یې هره شېبه ننداري ته ناست یو، مرګ مو په وینو او رګونو کې ځاله کړې ده.

یوه شپه به سوچونو کې ډوب وم، چې یوه څه مې زړه ته راولوېدل، زړه مې راته وویل، چې دا خپل څو خام او نیمګړي شعرګوټي تاسو ته امانت درولېږم، چې که څه وشول ضایع نه شي. ښیښنه خو تر ما دمخه مړه شوه، وېرېږم، چې شعر مې له ما وروسته هاسې نه شي او که هېڅ هم ونه شول، راته چاڼ خو به یې کړې! څو شعرونه مې ((سپنتا)) سپین ږیري سره پاتې شول او له ما سره یې اوس کوم نقل نه شته، هغه غوښتل څه پرې ولیکي خو حالاتو وخت ورنه کړ. که مې چېرې بیا موندل نو در وبه یې لېږم.

یوه ورځ به که خدای(ج) کول سره له نږدې وګورو.

ستاسو لېونی

۱۲/۵/۱۳۷۱

کابل))

ما هغه وخت غوښتل چې دا دواړه برخې په یوه مجموعه کې چاپ کړم، خو دا به د خدای تعالی(ج) رضا وه، چې د اوږدو

لارو مسافر شوم او اوس هغه مجموعه د ننګيال تر مړينې وروسته خپرېږي.
ما دخپل اوږد سفر په پيلامه کې هغه مجموعه خپل ګران ورور او تکړه شاعر او ليکوال لال پاچا ازمون ته د امانت په توګه وسپارله. له ښاغلي ازمون څخه د زړه له کومې مننه کوم، چې زما او د ننګيال هغه ګډ امانت يې، د يو ستر ادبي يادګار په توګه دغه څو کاله په ډېر کړکېچنو حالاتو کې له ځانه سره وساته او دا دی اوس د شعر مينه والو ته وړاندې کېږي.
دغه راز له خپل ګران ورور ، پياوړي ليکوال او د پښتو له سوې ستي خدمتګار اسمعيل يون څخه هم زياته مننه کوم، چې دغه مجموعه يې چاپ ته چمتو کړه، له هغو يادو شويو مجموعو سربېره يې د ګران ننګيال نور ناچاپ شعرونه هم ورسره يو ځای کړل، دغه راز يې د هغه چاپي شعرونو څو وتلې بېلګې هم ورسره ملې کړې او داسې يوه ارزښتمنه مجموعه يې ترې جوړه کړه. له نورو ټولو هغو دوستانو څخه هم مننه څرګندوم، چې له ډولونو څخه په يو ډول يې ددې مجموعې په چاپ کې مرسته کړې ده.

په مينه او درنښت

زرين انځور

۱۳۷۷ل کال د وږي ۲۷مه

۱۹۹۸م کال د سپټمبر ۱۸مه

جرمني –د کولن ښار

# اخځلیک


۱- ننګیال، اسحق، څاڅکي...څاڅکي. کابل، د افغانستان د لیکوالو انجمن: ۱۳۶۸ل کال (۲-۷)م،م.

۲- همدغه اثر. (۱۸-۱۹)م،م.

۳- همدغه اثر. (۹۲-۹۳)م،م.

۴- ډیوه (مجله-لندن) ۱۳۷۴، غویی(۱۹۹۵م ،می) ۱۷مه ګڼه (۲۱)مخ.

۵- ازمون، لال پاچا، پګړۍ کې کم نه یې له کاکله ګله (د نارنج ګل د دودیزې مشاعرې په ویاړ) ننګرهار (اطلاعاتو او کلتور لوی ریاست) ۱۳۷۲ل کال، (۱۴۲-۱۴۷) م،م.

۶- ننګیال، اسحق، څاڅکي...څاڅکي. کابل، د افغانستان د لیکوالو انجمن: ۱۳۶۸ل کال (۲-۷)م،م.

۷- ډیوه (مجله-لندن) ۱۳۷۴، وری، (۱۹۹۵م ،اپریل) له اسحق ننګیال سره د ښاغلي اسمعیل یون مرکه، (۱۵)مخ

۸- ټکور، افضل، دا لیکوال دا څېرې( د اسحق ننګیال د شعري بېلګو یوه برخه) کابل، ۱۳۶۶ل کال، (۴۲۹-۴۲۸ )م،م.

۹- ننګیال څاڅکي... څاڅکي (۴۷-۴۸) م،م.

۱۰- همدغه اثر(۸-۹ )م،م.

۱۱- ازمون، پګړۍ کې کم نه یې له کاکله ګله. (۱۴۸)م.

۱۲- ننګیال څاڅکي... څاڅکي (۳۷) م،م.

۱۳- ننګیال، کله چې لمر شین شي. ازاد افغانستان، جریده (د افغانستان د مطالعاتو مرکز) پېښور، لومړی کال، لومړۍ ګڼه، ۱۳۷۷ل کال، وری (۱۰)م.
۱۴- ننګیال څاڅکي... څاڅکي (۲۲)م.
۱۵- همدغه اثر (۳۹)م.
۱۶- همدغه اثر (۶۹-۷۰)م.
۱۷- ننګیال، ګناه، لېمه (مجله-مسکو) لومړی کال، ۴مه ګڼه، ۱۳۷۶ل کال سنبله (۱۹۹۷م کال، سپتمبر)، (۵۴)م.

## ننګیال د نورو لیکوالو له نظره

❖ اسحق ننګیال یو رښتینی، ریالست او هیومانیست انقلابي شاعر و او زه به یې د لارښوونې ویاړ د ژوند تر پایه په خپلو اوښکو ساتم. **پوهاند ډاکټر مجاور احمد زیار.**

❖ د اسحق ننګیال شاعري د ژوند شاعري ده، ژوندۍ شاعري ده، د موضوع او شکل دواړو له خوا د څېړلو او څېرلو وړ ده. **حبیب الله رفیع.**

❖ ننګیال خپله شاعري په ژوندیو انځورونو کې پلې کړې ده، هغه یو لوی انځورګر دی، د غم دیوه شهکار تابلو یې کښلې ده، چې انځورونه په کې ژاړي. **پیر محمد کاروان.**

❖ ننګیال په غربت کې پیدا شو، په غربت کې لوی شو او په غربت کې یې ژوند تېر کړ، هغه هېڅ نه لرل، خو یوازې شعر یې لاره او د غه شعر د هغه ټوله شتمني وه. ننګیال زموږ د لومړۍ لیکې له مخکښو شاعرانو څخه و، چې په شعر کې یې صمیمیت، نوښت او خوږوالی و. هغه په خپل عادي ژوند کې هم ډېر عاطفي، صمیمي او خواخوږی و، یو انتقاد منونکی شخص و او هر څه به یې په ورین تندي منل. **بریالی باجوړی.**

❖ ننګیال یوازینی عاطفي شاعر و، چې په شعر کې یې له ډېرو نوښتونو سره د ازاد شعر جنډه هسکه کړه او دهغې سیوري ته یې ډېر ستړي دمه کړه. **لال پاچا ازمون.**

❖ ننګیال یو نوښتګر او پر ښکلا مین شاعر و. **نورالحبیب نثار.**

❖ اسحق ننګیال د پښتو په معاصرو ادبیاتو کې داسې یو روڼ او نه هېرېدونکی فصل دی، چې د برېښنا د یوه پړک په شانې وځلېد او ژر الونیا شو او د زړه اس یې ارمانونوله درانه بار سره د ((یوباد)) تر سر ځار شو او زموږ وطن یې له یوه لوی ویر سره مخامخ کړ. **احسان الله ارینزی.**

❖ ننګیال هغه مجنون شاعر و، چې د خپل لیلی هېواد د ښکلا لپاره د خپلې ځوانۍ او ښایست بدرنګۍ ته هم تیار ولاړ و. **بادام ظریفي.**

❖ ننګیال له ((بې ضرورته)) شعر ویلو څخه مخ واړوه، له تقلید څخه یې نوښت ته مخه کړه او د شعر اصلي جوهر ته یې پاملرنه وکړه. **نورمراد.**

❖ ننګیال د ښکلي لغمان د شاعرانو د لویې کورنۍ د سرګل، د افغانستان د ځوانې پښتو شاعرۍ سر خېل او د ازاد شعر سالار و. **ډاکټرمحمدالله رازق.**

❖ د ننګیال شعري ځواک دومره پیاوړی و، چې کله ما دده یو شعر (خیبري تنده) چې د سر بیت یې دا دی:

**ټول عمر درنه ده سپکېدو ته یې چې پرې نه ږدئ**
**خاوره پښتنه ده او پردو ته یې چې پرې نه ږدئ**

ولوست له واره یې په ولولو راوستم. **ډاکټر جاوید وردګ.**

❖ د ننګیال د شهرت او بریالیتوب یو راز په دې کې نغښتی و، چې دده د واکمن ګوند فرهنګي غوښتنو او سیاستونو ته یې غاړه نه ایښوده او نه یې غوښتل، چې دستوري خبرو ته ځان تسلیم کړي او د ورځې دستور ته په پاملرنه شعر د شعار تر سطحې راټیټ کاندي. دی په واقعي مانا یو روښانفکر و. په فرهنګي، اجتماعي مسایلو کې یې له یکه تازۍ او یوګوندي استبداد څخه کرکه کوله. **سرمحقق زلمی هېوادمل.**

❖ که دافغانستان د پښتو د نوي نسل د شعر په حدودو کې یوازې دوه کسه هم تر نورو زیات ځلېدونکي، پیاوړي اود پاملرنې وړ وي، یو یې اسحق ننګیال دی. **زرین انځور.**

❖ ننګیال د جنګ په ډېرو بدو شرایطو کې د خپل ټاټوبي په غېږ (کابل) کې فرهنګي او ادبي کارونه په پوره مینه او اخلاص پر مخ وړل، هغه شپه او ورځ پر ځان

یوه کړې وه. که مبالغه ونه کړم، نو ویلای شم، چې ډېر کم وخت یې د ارام لپاره لاره. **فرېدون.**

❖ ننګیال لکه څنګه چې په شعر او ادب کې یو روښانه ستوری و، همدغه شان د نېکو اخلاقو څښتن هم و. تل به یې له هر چا سره په ورین تندي چلند کاوه. د مشرانو درناوی دده پر طبعیت واکمن و. له کشرانو سره یې مینه ډېره زیاته وه او په نورو ټولنیزو خېرښېګڼو کې ډېر پیاوړی و. **مولوي عیسی خان عالمي.**

❖ ننګیال د یوه لوی عزت سیوری و، چې تر دې سیوري لاندې د هر لاروي دمه جوړېده، هر چا تر دې سیوري لاندې د ارام ساه اخیسته او بیا یې نود خپل منزل پر لوري د یون لپاره ځان جوړاوه. **احسان الله الینګاری**

❖ ننګیال یو هځاند او ښه انځورګر لیکوال او شاعر و، هغه دهېواد ناخوالې په ښه شان انځور کړې او هغه یې د تاریخ په پاڼو کې خوندي کړي دي. **محمد حکیم.**

# هغه شېبې، هغه کلونه

دا چې لګیا یمه زخمونه شمارم
تورو کمڅو ته دې ګلونه شمارم
تا چې پرې اېښې نازولی قدم
هغه کوڅې هغه بامونه شمارم
ستا له رښتیا ستا له درواغو لوګی
څه دې وعدې څه دې لوزونه شمارم
حسن یې یو دی یې مغروره په څه
ته چې خالونه زه داغونه شمارم
ته لوبوه په ګرېوانونو امېل
زه د ګرېوان زاړه تارونه شمارم
حساب یې ورک شي راته راشي خندا
څومره ساده یمه غمونه شمارم
کله به راشي په مزار د ننګیال
هغه شېبې هغه کلونه شمارم.

۲۲/۱/۱۳۲

## خيبري تنده

ټول عمر درنه ده سپکېدو ته يې چې پرې نږدې
خاوره پښتنه ده او پردو ته يې چې پرې نږدې
پرېږده خيبري تنده چې بيا په وينو ماته شي
ګرمه معرکه ده سړېدو ته يې چې پرې نږدې
سره چې وړې اورونه په کمڅو کې د پښتو ناوې
ښه ده چې لمبه ده لوګېدو ته يې چې پرې نږدې
زلفو د جانان ته چې څو سرې وينې غوټۍ نه شي
لاره تکه سره ده وچېدو ته يې چې پرې نږدې
نن مې د خوشال توره چې بيا هوس د شرنګ لري
تاوه په شرنګ ښه ده چوپېدو ته يې چې پرې نږدې
ګورئ چې اسمان کې وربېځ د ستورو د لار پل وهي
ورځ خو لا اوږده ده تورو شپو ته چې يې پرې نږدې
وړې يې چې غرور ته ثريا په جام د سترګو کې
ښغه مو شمله ده کږېدو ته يې چې پرې نږدې.

۱۷/۹/۱۳۶۴

# طلایي مرغان

سهر اوچت شو
دتیارو لمن یې خیرې کړله
او سپرلنیو وړمو
ددې شینکي اسمان په دښتو کې
په سرو منګولو
باغ دنارنجو جوړ کړ
او،
ددې لوی دریاب په غاړه کې
دحسن په کور
د شنو اوبو د سپینو سپینو آینو د پاسه
د سرو لمرونو
طلایي ماهیانو ولامبلې.
۷/۲/۱۳۶۵

## ښکاري ته

ای ښکاري اشنا ! درته سلام کوم
پرېږده چې دا سپينې مرغۍ والوزي
لاړې شي جوړې جوړې ګلونه شي
ښکلي شي ښايسته شي امېلونه شي
واخلي په وزرونو کې تنکي بچي
وموښي سينو کې ګلالي بچي
سپينې سرې منښو کې زرکني بچي
پام کوه !
پام کوه ماشې ته ګوتې مه وروړه !
✵ ✵ ✵
ای ښکاري اشنا درته سلام کوم
پرېږده چې دا شنو جلګو کې وځغلي
پېغلې د هوسيو د دامان په لور
واړوي پيکي د شنه اسمان په لور
وخاندي راتاوې شي مستي وکړي
ورغړي نخرې وکړي خوښي وکړي
پام کوه !
پام کوه ماشې ته ګوتې مه وروړه !
✵ ✵ ✵
ای ښکاري اشنا درته سلام کوم

پرېږده د غونچو په لمن پرېوځي
زموږ د کلي باغ کې د سپرلي بلبل
زموږ د خمارونو شرابي بلبل
پرېږده چې په سرو مښوکو وبولي
زموږ د بام د پاسه د سپرلو سرود
بڼ ته د غوټیو د ښکالو سرود
ځمکې ته د ورېځو بارانو سرود
پام کوه !
پام کوه ماشې ته ګوتې مه وروړه !
❋ ❋ ❋
ای ښکاري اشنا ! درته سلام کوم
ګوره دا بې ژبې مرغان مه وله
نه یې چې کوم ووړ بچی بې موره شي
ته هم ګوره پلار یې او بچی لرې
پېغله لور ښایسته زوی ګلالی لرې
درد لرې، ارزو لرې، زړګی لرې
نو !
ای ښکاري اشنا ! درته سلام کوم
پام کوه ماشې ته ګوتې مه وروړه !
**۱/۳/۱۳۶۵، کابل**

## څار

باده ! لږ پام کوه
ورو ، ورو چلېږه.
دوير ګلان مې د سهار له اننګو ټول کړي
د ورېځو سيورو ته مې ايښې دي
بې خوبه ککې
د شپو سارا کې د درواغجنو ستورو
لارې څارم ! ! !

۲/۳/۱۳۶۵

کابل

# ګناه

هېره دې جفا کـه نـور دې نـه درځـم پـه کلـي
دا ځلـې خولـه راکـه نـور دې نـه درځـم پـه کلـي
مادرتـه نيـازبين زړګـی ټـوټې ټـوټې راوړی
ډېره دې ادا کـه نـور دې نـه درځـم پـه کلـي
نـن راتـه سـاقي د انګـوري ميـو ست مـه کـوه
شـونډې دې مينـا کـه نـورې نـه درځـم پـه کلـي
خولـه خودې ښـېرا نـه غير دعاتـه جوړه نـه شـوه
سترګو کې موسکا که نوردې نه درځم په کلي
ټول عمر ډک نه شو تش کچکول د ګدا سترګو
نـن ديـدن سـېوا که نـوردې نـه درځـم پـه کلـي
زه ملامت نه يم صبر مات شو ته مې ښکل کړې
معافـه مې ګنـاه کـه نـور دې نـه درځـم پـه کلـي.

۱۲/۵/۱۳۶۵
کابل

# غزل

زړګیه اوښکه د لېمو شوې دا دې څه وکول
تېر د قاتلو په کوڅو شوې دادې څه وکول
دلته د ښکلو مینه سرغواړي د عشق په بدل
راغلې مین په داسې غلو شوې دادې څه وکول
دلته خو لاړې د جنون وې د هوس خو نه وې
تاو د جنون په زنځیرو شوې داد څه وکول
قدم چې خوشې دلته اخلې په اغزیو لګي
ته یې په خیال د پسرلو شوې دا دې څه وکول
ته خو پښتون وې سرټیټی دې چاته هم نه و زده
بې شرمه دلته په سجدو شوې دا دې څه وکول.

# تشې هوجرې

ګلونه شته خو له وږمو خالي دي
جامونه ډېر دي له نشو خالي دي
نور يې نو شرنګ نه شته چې پا مې څوي
سپين مړوندونه له بنګړو خالي دي
نجونې سرتورې شوې بهر نه راځي
ځکه قبرونه له ډيوو خالي دي
چې يې پيزوبب شي زنګ وهلې کړې
دغه کوڅې له لېونو خالي دي
چې مې رقيب په کلي زغرده راځي
ښايي هوجرې له پښتنو خالي دي.

۱۳۶۲
کابل

زما دلور (اوښکې)
د زوکړې په شپه

## د سرو وینو د شپو څانګې...

د سپوږمۍ ټیک په وربل کې
دا له کوم لورې نه راغلې؟
د موسکا په ډکو شونډو
د ساړه ژوندون زندان ته!

❋ ❋ ❋

دلته مرګ دی، دلته وینې
موږ پر خپل ژوندون په تنګ یو
تا بې غمه جهان پرېښود
د ژوندو مړو مېلمه شوې.

❋ ❋ ❋

دلته زموږ د ژوند پر ولو
زموږ د مېندو په سینو کې
د زلمیانو په ککو کې
د پېغلوټو په کمڅو کې
رازنګېږي، رازنګېږي
د سور وینو د شپو څانګې...

۱۰/۲/۱۳۶۲، کابل

# شپه

تاسو پر کمڅیو باندې تېره کړه
موږه شپه اغزیو باندې تېره کړه
دا د ژوند مرورلې او ترخه کیسه
ټوله مو سپرغیو باندې تېره کړه
یوه شېبه رود ل به وو د شپو له تې
دا شپه مو پېړیو باندې تېره کړه
تاخو په سرور، ما د نشو ډولې
تورو تروږمیو باندې تېره کړه
ډېرو ستمګرو مو د وخت توره
څو ځلې مریو باندې تېره کړه.

۲۵/۸/۱۳۶۲
کابل

# نصیب

موږ چې له اره د شپو روږدي يو سبا دې نه شي
که په څو شمعو شپې رڼېږي نو رڼا دې نه شي
خيــردی زمــوږ دبــاغ ګلونــه کــه تــالا تــالا شــول
ستا د ښايست، ستا د کمځو غرونه تالا دې نه شي
د خپل تندي تياور کې ډوب شوم ستا وربل مې هېر شو
ستادېلتون خوب مې ليدلی دی رښتيادې نه شي
خــوا مــو اغــزو ،لاره اغزو ،کلــی اغــزو نيــولی
دا سې سپرلي کې که راځې ګلونه رادې نه شي
موږ د تقدير پر مانړو په وچ سمندر ټول لاهو کړو
دغه نصيب به وي زموږ خو د بل چادې نه شي.

۱۳/۱۱/۱۳۶۶
جلال اباد

# انګازې

چوپه چوپتیا ده
لارې چوپې دي، کوڅې چوپې دي
چرګانو نارې نه کړې
ملا اذان ونه کړ.

❋ ❋ ❋

دا څه سهار دی؟
چې له یوه کوره یو غږ
د یوه ورد خلاصېدلو ونه خوت
چرګانو نارې نه کړې
ملا اذان ونه کړ.

❋ ❋ ❋

واټونه تش دي
د سوالګرو ماشومانو
پر نازکې چغې پلنې نه شوې
چرګانو نارې نه کړې
ملا اذان ونه کړ.

❋ ❋ ❋

خو یو غږ اورم،
یو غږ وینم،
یو غږ څښم

چې مې په ذهن کې ژړېږي
انګازې کوي
په ماته ژبه وایي راته:
کارغان راغلل
کارغان راغلل
کارغان تورې غاړې راغلل
وای ! زموږ د باغ ګلونه
وای ! دا ونې، دا فصلونه.

۱۳۶۷ل کال
کابل

## ژوند ته ژړا

سترګې دې شته؟
ته راته ګورې؟
غږ مې اورې؟
ژوندونه ! نن دې پټو سترګو ته
يو غلی مساپر ناست يم
چې اسوېلیو ته مې
دباد او توپانونو
د کاروان اوښې ستمی کوي
اود غم اور ته مې
د غرونو
اود دښتو
ډبرینې پښتې وسوځېدې
اوښکې مې بېرته خو را !.
۲۸/۲/۱۳۶۷
کابل

# درشل

چې پر اغزنو لارو ځو سبا ګلونو کې ځو
د عشق درشل ته په سکروټو په اورونو کې
ځــــــــــــــــــــو
شپو کې دلمر زړي کرو وربځې په ستورو ولو
پاتې منزل پورې اشنا په سحرونو کې ځو
کړې کوځې که د سفر څو له تيارو ډکې دي
دوينو سور مشال په لاس کې تورتمونو کې
ځــــــــــــــــــــو
له زړنو پرخې ووروو پر جل وهلي فصل
شپې، شپې لکه وږمې مړاوو باغونو کې ځو
د وصل لاره کې رقيب خير که کوهي کيندلی
سبا به غاړه غړې ياره ! منزلونو کې ځو.

۳/۴/۱۳۶۷
کابل

# لوونه

ګل شول هر خواته په کروندو لوونه
مورېه کوو د خپل سرو لوونه
ته دې ګلان دلې وړه پر سر
مور ته راپېښ دي د غونچو لوونه
مور د لونګو کرونده کړې وه
او س پکې کېږي دا غزو لوونه
خوا شيني نه يو پر بې سرو تنو
مګر چې نه شي د شملو لوونه
خير دى که نور راکې څه پاتې نه دي
وطنه! ځار درنه د زړو لوونه.

۳/۲/۱۳۶۷
کابل

## مات خوبونه

هېڅ نه پوهېږم،
چې سبا به مې د ماتو ارمانونو
مړاوي شوي بڼ کې
د شنو اغزيو باچاهي
پر کوم ګل اوربلوي؟
هره شېبه، هره ګړۍ مې
د خوږو خوږو خوبونو
د ماتېدلو اوازونه اورم.

❋ ❋ ❋

هره شېبه، هره ګړۍ
له خپله ځان تښتم
هره شېبه، هره ګړۍ مې
څوک له ځانه شړي
د يوه ځنګله پر څانګو ناست يم
يوه سيوري کې مې ځاله کړې
سيوری زما په هره ساه کې
ځغلوي د خپلې ساه تنستې؛
زه،
سيوری،
څانګې،

لاس په لاس د تور ځنګله له پا چاهۍ نه
د غريبې مهاجرې کورنۍ په څېر
په ګډه تېښتو.

❋ ❋ ❋

زه د مزل په هر يو ګام کې
د پرون شاهدان وينم
او د نن شهيدان.
زه مې د غرونو او څېړيو
د ګونګۍ ژبې اورينو افسانو ته ناست يم
چې هره ورځ کې راته ښيي
په خوني ټکو دوينو
او اورونو تاريخ.

❋ ❋ ❋

زه يې په سترګو کې
د خپل نن او پرون
ماتې هنداري وينم.
زه په زړو هديرو لولم
د نيکونو په لاسونو کې
د نن د زېږېدلو کيسې.
۱۸/۲/۱۳۶۷، کابل

# کوټنۍ

نور مې تر دې چت لاندې
خوب نه راځي
نور له ختېنو دېوالونو
او بامونو سترې شوې یمه
ما ته له دې ځایه نه لېرې
په ځنګله کې
یوه د غوړګو کوټنۍ کوره کړئ !

۲۴/۲/۱۳۶۷

# باور

منم د ژمې چې اثر نه شته دی
خو پرسپرلي هم څه باور نه شته دی
ګودر به وي، نجونې به ډېرې وي خو
هغه د ښکليو مازيګر نه شته دی
تنها کوم مګر او به چې نه شوم
د اتشي سترګو نظر نه شته دی
شپه سبا شوې له مودو څنې پس
خو زور په زړه کې د سحر نه شته دی
لوېې د ډېرې چې مو اغزو ونيوې
جګې شملې پګړۍ په سر نه شته دی

۳۱/۲/۱۳۶۷
کابل

## د مسکو پېغلې ته

زه چې ګورم ستا د زلفو دمارپېچو غرونو باغ ته
ماته یاد شي
زموږ د پېغلو وران پیکي، ځنګل سرونه
زه چې ګورم ستا د شونډو د شرابو سره لښتي ته
ماته یاد شي
پر وطن مې د سرو وینو ډک سیندونه
زه مې خپل او هم خو ستا بخت ته حیران یم
پر ماکانې وروي، پر تاګلونه

۱۹۸۸/اکتوبر۱۳مه
مسکو

## سترې مور مې

هر څو زېبښمه ورو ورو (د بلبل اوښکې ))
هر څو زېبښم د وربښمو شونډو څاڅکې
هرڅو خبرېږم د نشو پر مينارونو
لامې مينه تاوده نه وي چې را ياد شي
دا زخمي زخمي وطن مې
او دا سترې سترې مور مې
هر يو ګوټ شي د شرابو
پيمانه راته د زهرو
راته يادې کړي مچکې
د ملګرو سور ټټر مې.
اى زما وطنه !
اى د مرګ او وينو کوره !
لرې مې پر بېړده ، لرې مې پر بېړده
چې مېلمه يم پس له عمره
د يورپ د ښاپېريو.

۱۹۸۸اکتوبر ۱۹مه
کيف

زما زوی ارش ته:

## ستړي شعرونه

زه دې له لرې نه اواز اورم
زه دې له لرې ننداري کوم
چې لټوې مې سرګردانه نا اشنا کوڅه کې
چې لټوې مې ددې سترو ميخانو غاړه کې.
خو زه
د شنو ونو د لاندې له خپل سيوري سره
ښيينبه د غم دميو لاس کې
له هرګوټ نه وروسته
د اورلګيدو د کوچنۍ لمبې رڼاوو لاندې
ستړي شعرونه ليکم.
هوکې !
د وينو شعر، د غم شعرونه
او ستا د ماتو مړاوو شونډو ارمانونو غزل.
**۵/۹/۱۳۶۷**
کابل

# راشئ او وګورئ !

راشئ او وګورئ !
زما د ژوند دا((شنې شنې)) اود ((مستو)) شاعريو شېبې
راشئ او وګورئ !
زما دغزلونو د ميلاد او کوچنيوالي دغه تنګې کوڅې
راشئ او وګورئ !
زما د شعر چغې مساپر ماښام کې
چې په سرو وينو لامبي
چې سترې ساندې بولي
چې تورتم کې د څو وچو اورلګيدو
دې کوچنۍ رڼا ته
وينه شي، وڅاڅي او ژاړي سربدالله دې کنې ځمکې ته.

❋ ❋ ❋

راشئ او وګورئ !
زما دمړو خوبونو د اسمان دا نړېدلې ځاله
راشئ او وګورئ !
زماد غزل سترګو کې
څپې، څپې د وينو او سرو اوښکو چينې.
راشئ او وګورئ !
زما د شعر ګلونه پاڼې پاڼې

الماسي بربښنده غاښو کې د خاړو پاتې.

❋ ❋ ❋

راشئ او ومې ګورئ !
راشئ او ومې ګورئ !
چې څنګه خلاص شم شوګیرونه د سهارله شنو بادونو سره
وایم چې نه یې لیکم
خو پاڅم وخوځم او ګرځم
لا هماغسې له غمو ډکو شعرونو سره.

۱۰/۹ /۱۳۶۷

# شومه دم

راځه چې څه د ستورو د لالونو شومه دم دی
په څنو د سپوږمۍ کې د ګلونو شومه دم دی
کیسې خو په والله چې د شرابو زړې شوي
جانانه ! د سرو شونډو د جامونو شومه دم دی
د شمعې په رڼا کې به مې ستا څېره لیدله
اوس راشه چې مې کور د مشالونو شومه دم دی
خیالونه شول څپې څپې په شنه سین د اسمان کې
ته ګوره چې اشنا ! د غزلونو شومه دم دی
زما د انتظار شپې او ستا نیم کښنه سترګې
زما د شوګیرو ، ستا د خوبونو شومه دم دی.

۲/۱۰/۱۳۶۷
کابل

اجمل خټک ته:

# شمشاد شمله، زیړې خبرې

تــه رانــه ځــې او زه تنهــا کې پــر ځیګــر ګرځــوم
د ذهــن بــاغ کــې دې کــرم یــاد دې پــر ســر ګرځــوم
اشــنا ! در تلــی نــه شــمه لار ټولــه اغــزو نیــولې
د زړه پــر ګــل دې لکــه پرخــه هــر ســهر ګرځــوم
څاڅکی غـزل بـه مـې لیکـه تابـه تـر جـوړ کـړ دریـاب
اوس بـه د شـعر منګـی خـالي پرکـوم ګـودر ګرځـوم
بـې شـکه کـور د پښـتنو کـې لـر وبـر خـو نـه شـته
چې مې د زړه ((دالان)) نه ځې خاورې پر سر ګرځوم
ستا دا شمشاد ، شمشـاد شـمله او سـتا زیړې خبرې
لکــه رونې ســتوری پــه اســمان کــې د خیبــر ګرځــوم
ګــوره زاري درتــه کــوم چــې درنــه نــه شــمه هېــر
ســتا د ((غیــرت چیغــه)) خـو زه پـه لـر وبـر ګرځـوم.

۳/۱۱/۱۳۶۷
کابل

## د خاورین کلي ناوې

هاغه ده وینم یې تر خاورو لاندې
یوه سپېځلې څېره
او یو تنکی ماشوم
چې پوست په غېږه کې نیولی دی د ځمکې ادې
تی ورکوي
او له خاورین زړه نه یې ورکړلې
د تورو تورو وینو لپې.

❋ ❋ ❋

هاغه ده وینم یې تر خاورو لاندې
یوه رنګینه پانه
یوه نازکه لښته
چې شنه بادونه یې خاورین کلي ته ځي
او ورته ساه ورکوي
باران یې زلفې مینځي
او شنې وږمې یې غوږ ته بولي

د ښایست او د شنې مینې کیسې.

❋ ❋ ❋

هاغه ده وینم یې تر خاورو لاندې
یوه د حسن ډیوه یوه ښایسته شهزادګۍ
یوه له شنو، سپینو او سرو رنګونو ډکه
نازولې انا.

❋ ❋ ❋

هاغه ده وینمه یې
چې له خاورین کلي نه راغله
د ښایست پر اوږو.

❋ ❋ ❋

ګوره سپرلی راغی
هلته یو ګل وټوکېد.

۱۳۶۷ کب
کابل

# فصل

د خـزان رټلـی ګـل یـم پـر سـپېڅلي بهـار سـوځم
د ګـونګې شـمعې رڼـا یـم د شـپې زېږم سـهار سـوځم
ورتـه اوښـکه شـم د سـترګو زمـا سـترې سـفر ګـورئ
لاېـې کـوز پـر شـونډو نـه یـم چې پـه ښـکلي رخسـار
سـوځم
د کمځیـو د بـڼ ګـل وم لکـه رونړ د شـفق څـاڅکی
ستاد تـورو زلفـو غـره تـه اوس تنهالکـه خـار سـوځم
د لیلې زړه کې شوې هېرې د مجنـون لېونی سـترګې
ټولو لوزونه ځوانیمرګ شول د وعدو پر مـزار سـوځم
د وفا دانـې مـې کښت کړې د جفـا فصـل زرغـون شـو
د ژړا چـم خـو مـې نـه زده خـو د زړه پـه انګـار سـوځم.

۱۳۶۷ وری
کابل

# ښکاري نظر

زده کــه دې خــوا ره نــه دي ترخــه خــو راتــه ووايــه
مـات مـات دې منګـی شـه جنی، څـه خـو راتـه ووايـه
زه ســاده پــه غــورو د لېمــو کلــه پوهېږمــه
نيمــه راتــه ووايــه د زړه خــو راتــه ووايــه
نــه وايمــه نــه چــې راتــه وکــړه د وصــال کيســه
خيــر دی يــو غــزل د ېلتانــه خــو راتــه ووايــه
مــا دې د الفــت زړې د زړه پــر ســر کرلــي دي
تــه پــرې د ســپرغو د بارانــه خــو راتــه ووايــه
سترګې مې باولی شوې ستا ښکاري نظر ته کېناستې
اوســه يــې هغــه وخــت د قتلېــده خــو راتــه ووايــه

۱۸/۱/۱۳۲۸
کابل

## زړه سوی پر غوټۍ

نـــازولې غـــوټۍ راغلـــه
د سـپوږمۍ امېـل پـر غـاړه
د سـپرلي وينـې پـر شـونډو
او د سـتورو د سـرو اوښـکو
پــه چينــو مينځلــې زلفــې

✵ ✵ ✵

دا ډ پــرۍ د ســپينو واورو
د جلګــو ســپين کفنونــه
يرغلونــــــه د ږليـــــو
د يخجنــو بــادو کړيکــې
توپــاني خــونړۍ وربځــې
دترخـــو ســـيليو ژبـــې
د ګلونـــود مـــرګ چغـــې
د ويرجنــو ورځــو مينــدې
د نېستۍ پر سين لاهو شول
راتـه سور پسـرلی شـين شو

زما زړه پر غوټۍ سوځي

❋❋❋

زما زړه پر غوټۍ سوځي
چې د مرګ له پولې راغله
له لوخړو ډک جهان ته
د شرابو جام په لاس کې
خماري نشې په سترګو
خو شېبه پرې تېره نه ده
چې بې اور او توپان سوځي
د ثواب بنګړي پر لېچو
له ګناه تشه لمنه
دا زمورږ د وینو سین کې
دا زمورږ غریب سپرلي
کې!!!

۲۴/۱/۱۳۶۸
کابل

# د بې لارو لارو پل

تا وې درځم به
ما مې زړه درته باغچه باغچه کړ
زماد مړه امید انګړ کې
د نرګسو او زنبقو ګلان وغوړېدل
زماد ذهن د اسمان
د اجل وهلې دښتې
او وچې شوې چینې
لکه د شنه هسک کرونده کې
د سپوږمۍ
او رڼو ستورو د موسکاوو پټې
هاسې پر فصل راغلل
❋ ❋ ❋
ستا دراتلو د شېبو تال کې زنګېدم زنګېدم
ستاد راتللو هر قدم ته مې د شعر پېغلې مینځې کړلې
ستاهر قدم ته مې د شعر نازولې وینې وپاشلې

خو ته رانغلې:
خو ته رانغلې د شينکي باد د کمڅيو
غورځېدلې غوټۍ
زما د بې ګله شملې ول ول کې تلپاتې شوله
او هر سهر راته په ذهن کې
دا ستا د قدمونو
دبې لارو لارو پل ښيي.

۲۹/۱/۱۳۶۸
کابل

## سيلۍ

تـورې سـيلۍ دي پـه جـونګړو کـې رڼا نـه پرېـږدي
دلتــه دوینــو لېــوني چیرتــه خنــدا نــه پرېــږدي
چـې د اشـنا خـورو ورو زلفـو کـې نـه شـته ګـلان
ظالم وختونه د سپرلي ستوني کې سا نه پرېږدي
پـرون پـه کـانړو نـن چـې داسـې پـه سـکروټو لګـو
شـېبې سلګۍ تـه خو مو هېڅکله سبا نه پرېږدي
وینو کې زېږي، پکې لوی شي، پکـې ومـري بچـي
قاتلې شپې دي دعا ګوی کور کې د چا نه پرېږدي
داسـې مبلمـه شـو پـه وطـن راتـه د مـرګ سـوداګر
چاتـه عـزت، چاتـه شـمله، چاتـه حيـا نـه پرېـږدي.

۱۵/۲/۱۳۶۸
کابل

## د شهادت کیسې

چا مې د مات، زخمي زخمي
او مړاوي شوي خوب تعبير ونه کړ
چې مې د اوښکو د ګلونو نندارې ته
ددې لرې وطنونو له باغونو نه
د شاتو مچۍ ولې راځي؟
۞ ۞ ۞
چامې د زړه د وينو سين کې
وينې څښونکي کبان ونه ليدل
چې يې د مستو خنداګانو
او پيالو له کړنګهار نه يې
دې لوی کلي او ټول وطن ته خوب نه ورځي.
۞ ۞ ۞
چا د اسمان له چاودې زړه
زخمي سينې
اوله ويرجنو سترګو ونه پوښتل
چې د سپوږمۍ ناوې

د هسک د واټ په منځ کې
د شهیدو ستورو وینو نه
پر مخ ولې خالونه ایښي؟
او شپو ته بولي
د اسمان د طلایي بڼ
د هر ګل او سرې غوټۍ
د زړه چاودون او شهادت کیسې.
۱/۴/۱۳۶۸

## درې نومونه

زما د شتو پوښتنه ولې کوې؟
زه مې د ژوند لپاره
درې نومونه ښکلي
او له هر څه نه سپېڅلي لرم:
شعر،
شراب،
او د شنو ولو د شنو څانګو غرمو سيورې.

۵/۴/۱۳۶۸
کابل

## د ماضي پاڼه

د سرو وینو پرون وینم
چې د نن شفق ته ګورم
راته تېرې کیسې ښیي
د ماضي پاڼه اینه شوه.

***

چې کې لوی سمندر وینم
په باغي څپو کې لامبم
د زمان ګلونه مینځم
د ازاد ساحل په څاڅکو
د نجات پر بېړۍ سپور یم
کله تندر کله کله اور یم
رنګوم د سکون څلې
ویښوم د ماڼو کلي
هر محل راته میوند دی
هره دښته تاتره شوه.

***

چې کې لوی غرو ته ګورم
ټول جهان راته شمله شي
دا کړې وړې درې مې
راته رزم شي، جګړه شي
هره تېره د وطن مې
د جرګو لویه دېره شي
هره چغه د بابا مې
پر ((لاتیانو)) زلزله شي
هر یو توغ، هره جنډه مې
د پرنګ پر سر لمبه شي
هره پېغله د وطن مې
ملالۍ شي، زرغونه شي
چې دا مسته برېښنا وینم
راته توره شي تیاره شي
د پرون غرور ته ګورئ!
چې زموږ د لاس وسله شوه.

❋ ❋ ❋

لا د هسک څڼو کې زانګي
دا اسمان اسمان خیبر مې
دا دننګ د کسو تورشو

دا جهان جهان سپین غر مې
لا د فتحې سرود بولي
دا میوند میوند سنګر مې
د دښمن پر مری چورلي
د غازي ادې خنجر مې
لا د تورو ګوزار غواړي
د زلمي شهید ټټر مې
زېری ! زېری ! چې لا سره مو
د ننګونو معرکه شوه
دا په سرګټلې لاره
بیا زموږ په وینو سره شوه.

۷/۴/۱۳۶۸
کابل

# حاصل

بیا مو په کلیو، کروندو کې
د ماتم د ماښامونو دمې ونښېدې
بیامو د ژوند واټ
د سرو اوښکو د ماښام شفق
په وینو سور کړ.
او په دې ستړیو کروندو کې
د غنمو او ګنیو د هر فصل پر ځای
هره شپه د ځوانیمرګ ژوند
او د سرو وینو حاصل اخلو.

۲۲/۴/۱۳۶۸
کابل

## دا ستوري هم تويې شول

دا ستوري هم تويې شول
دا سپوږمۍ هم بوره شوه
او د دې شپو تورو ځنګلونو کې ژېړېږي
او لوېږي د شرمښو
او د دښتو د بګوو بچي.

❋ ❋ ❋

دا ستوري هم تويې شول
دا رڼا هم مړه شوه
او د زړو کېږديو منځ کې
د کوچنیو ماشومانو د خنداوو
او په غرو کې د زاړه شپونکي
د ((های های)) اوازونه پټ شول.

❋ ❋ ❋

دا ستوري هم تويې شول
سبا به لمر هم مړ وي
او موږ د شپوبنده ګان خاندو
د رڼاوو د مرګونو
او شهیدو ښکلو ستورو
ډلوډلو جنازو پسې.

۱۳۲۸/۵/۴، کابل

## هغه ورځ...

بيا به سره لېچې د رامبېلو
زموږ د کلي د ګلابو
له شينکي قده راتاو ، راتاو شي؟
بيا به د سرې غوټۍ ډولۍ
د پسرلي پر مرمرينو اوږو
راشي زموږ د کلي باغ ته؟
بيا به د غرونو
د زاړه شپونکي
د بين د زړه
زخمي اسويلي ساه واخلي؟
بيا به زموږ د کېږدۍ مخه
د وريو له سپېڅلو او معصومو اوازو ډکه شي؟
هوکې !
همداسې به شي
غرونه به هست شي
او دا دښتې به
له ډېرو ترانو سترې شي
خو هغه ورځ چې:
زما پر قبر
د پولادو شناختې هم ويلې وي؟
۱۸/۷/۱۳۶۸
کابل

## که سپوږمۍ نه وای

که سپوږمۍ نه وای
زموږ د شنه ښکلي اسمان کلي کې
زموږ د باغ خوږو انګورو به
د چاله حسنه رنګ اخیسته؟
او د کوچیانو کاروانونو به
پر کوم لوري مزلونه وهل؟
❋ ❋ ❋
که سپوږمۍ نه وای
زموږ د شنه ښکلي اسمان کلي کې
د مساپرو سلامونه به له لرې وطنونو
د اشنا سترګو ته چا رسول؟
او زموږ کېږدۍ به
د تورتم له خونړیو لاسو چا ژغورلې؟
❋ ❋ ❋
که سپوږمۍ نه وای
زموږ د شنه ښکلي اسمان کلي کې
د شعر پېغلې به تنکیو اننګیو ته
د مینې خال له چا پوراوه؟

او د وختونو تروږمۍ کې به
د ژوند او د امید ګامونه چا اخیستل؟
کښت دې سمسور سپوږمۍ !
ژوند دې زرغون،
ځواني دې هسکه او ښېرازه اوسه !.

۲۴/۷/۱۳۶۸
کابل

## لمبې په دام کې

دلته غوټۍ له ډېرې تندې وسوې
دلته د باغ ډیوې سوې قتلې
د اغزو پر خونړیو لاسو
او دلته ځمکه شوه د سربو
او اورونو پر غرمو بدله.

❋ ❋ ❋

دلته په کلیو کروندو کې
د ماتم د ماښامونو ډمې ونخېدې
بیامو د ژوند واټ
د سرو اوښکو د ماښام شفق
په وینو سور کړ.
او په دې سترړیو کروندو کې
د غنمو او ګنیو د هر فصل پر ځای
هره شپه به د ځوانیمرګ ژوند
اود سرو وینو حاصل اخلو.

❋ ❋ ❋

دلته په سترګو کې

تنکۍ اوښکې هم وچې شولې
دلته سیندونه، ګودرونه
او ویالې تږې شول
((دلته ډوډۍ وږې ده)).
❋ ❋ ❋
دلته د شنه سپرلي د ګلو د زېړېدا
او شهادت نېټه راغبرګه شوله
او زموږ په مینو او جونګړو کې
خواره لوګي
زموږ دژوند د پای ټکي شول.
❋ ❋ ❋
دلته وطن په وینو سور دی
او لګیا دی زموږ د وینو پر مدار څرخي
دلته زموږ داوښکو سین کې ملایک او شیطانان،
اوپرښتې او تور دېوان سره په ګډه لامبي
دلته غرونه غرور مات دی
او هر سین ته اتکړۍ دي پرتې
دلته د اورلمبې په دام کې نیسي.
❋ ❋ ❋
دلته اوبه، دلته اورونه، دلته خاوره
او بادونه رانه غلو وړي دي
دلته د سترګو له ککیو نه قي شوی
د شملو او لوپټو انځور

دلته زموږ د لاس تسبې او س د لوليو
او لغړو فواحشو په غوږو کې زانګي
دلته ويالې تږې دي
((دلته ډو ډی، وږې ده ) ).

۲/۷/۱۳۶۸
کابل

## ښېرې په مالت کې

جانانه ! دلته مه راځه لمبې دي په مالت کې
زندۍ دي زولنې دي، غرغرې دي په مالت کې
چې ته به لوبېدې پکې اوس هغه ګلان نه شته
ایرې دي په مالت کې، هډیرې دي په مالت کې
د مینې ګودر وران شو د منګیو کتار مات دی
له سرو وینو نه بیا جوړې ویالې دي په مالت کې
سبا به وي منم خو په ماحول کې د کوډګرو ؛
په موږه خو خورې ورې تیارې دي په مالت کې
ذره هم سترې نه شو پر موږ زور د ستمګرو
هر څومره که ژړا وې دي ښېرې دي په مالت کې.

۱۴/۸/۱۳۶۸
کابل

## اس (۱)

هغلته لرې يو سپين اس ولاړ دی
لکه د ګلو پرخه
لکه د قو بڼکه
لکه د ښکلي يار د سپينو غاښو سپينه برېښنا
لکه اوبو کې د ښايسته وو ښاپېريو د مړوندونو سيورې
✵ ✵ ✵
هغلته لرې يو سپين اس ولاړ دی
لکه د ستورو اوښکه
لکه د ټولې دنيا سپينه نازولې سپوږمۍ
ورپسې منډې وهم
چغې وهم
تښتي رانه
راځنې کرکه لري
فقط همدا سې لکه ته چې رانه کرکه لرې
منډې وهې

تښتې رانه
هلته یو اس ولاړ دی
هلته یو اس ولاړ دی
لکه د ګلو پرخه
لکه د قو ښکه.

۱۵/۸/۱۲۸
کابل

## هیلۍ

پاڼې را ورژېدې
څانګې بربنډې شولې
کفن د سپینو واورو واغوسته
د ځمکې ادې
کنګل زموږ په ویالو کې
د اوبو له ستوني ساه واخیسته
او ځوانیمرګ شول د سیندونو
نازولې کبان
نو ای هیلۍ !
وزورنه پرانېزه ورځه
دغه ماحول
ګرانې ! دا ستا د اوسېدو کله دی؟

۲۲/۹/۱۳۶۸
کابل

## سلامونه

هلته چې شنه ښکلي بادونه
غوړوي پر شنو ګنیو
د شنو پرخو امېل،
هلته چې ویالې دي
د جل په موسمونو کې
د ستړیو پردیسانو د غرمو څپرې
اودو بالو رڼې اوبه دي
د سپوږمۍ د پېغلتوب اینې
اشنا ! همغلته زموږ کلی دی
زموږ د ژوند هغه ویالې
او کروندې هلته دي
ګوره ! که راغلې کله زموږ
دغه زاړه، دغه کوچني کلي ته
ماته پلو کې
زموږ پټېیو نه د تللیو
((قځلاخو)) سلامونه راوړه !.

۸/۱۰/۱۳۶۸
کابل

## غلا

نن مې مو دو نه پس په ستر ګو کې
د خوب پر ځنګله اور ولګېد
خو سپین سهار روند شو
نن مې د کور په دېوالونو کې ځنګېږي
د ځوانۍ د زړه چاودون
او د ګناه یو وېروونکی انځور
کور مې لوټ شوی خوبه !
صدف په نارو باندې لوند دی
مرغلرې ورنه غلو وړې دي:
زما د مور دلاسو نښې ها سپېڅلې تسبې
او په انګړ کې
د انګورو د تاکونو هغه ښکلې، هغه مستې شنګلې.
۲۳/۱۰/۱۳۲۸
کابل

## ماښو ته سرود

موږه دې وینو ماښو !
موږه دې وینو ببرۍ !
ماښو ! زموږه دلته یو ګودر اباد دی:
د زلمیو او د پېغلو د تنکیو زړو د وینو ګودر
دلته زموږ د وطن میندې د کوډلو
او د ورانو کلاګانو انګړونه
هر سهار په خپلو سترېو سترېو اوښکو مینځي.

✻ ✻ ✻

زموږ بوختیا: ویر سره غاړه غړۍ
زموږ ((مېلې)) پر هدیرو، ټولېدل
او ټنګ ټکور مو: د ګولیو نڅا
ژوند مو د اور او د ایرو
او د سکروټو او سپرغیو
یوه تکه سره بټۍ ده ماښو !
مړي مو کور کې مساپر
او د ځنګلونو شرمښانو خوراک.

✻ ✻ ✻

خو موږ دې وینو ببرۍ !
موږه دې وینو د توپان او ګردابونو په سرونو
د ګلونو او عمرونو لالهاندې ببرۍ !
موږه دې وینو د یاغي سین په موجونو کې
چې اوړې او را اوړې

غورځې، پرځې
او را وخوځېږي
د څپو پر غرونو لارې باسي.
❋ ❋ ❋
موږه دې وينو ماښو !
موږه دې وينو چې ((سلام)) ته دې هر ګام کې
د وختونو لېوني پېريان
د شپو له ځنګلونو وتي
موږه دې وينو چې دې ښکار ته
هر څپک کې
د نهنګو وينې څښونکې لښکر ناست دی
له غاښونو نه ارې جوړوي.
❋ ❋ ❋
موږه دې وينو چې د درد کومې کې ساه وباسې
موږه دې وينو چې يوه تناکه مړه نه وي او بله درځي
موږه دې وينو چې د ژمي باد دې ژامو کې ډېره شوله
تاوه را تاوه شوله.
❋ ❋ ❋
موږه دې وينو ماښو !
چې هره ورځ او هره شپه، هره ګړۍ راته دا ستا
د سفرونو او مزلونو د ګامونو ښکالو
دلته راځي
موږه دې سوز، موږ دې ګداز او رو
موږ دې په لاس کې د ورغوي کرښې دلته لولو

ماښو ورځه !
ماښو وردرومه، سفرکم مزلونه لږ پاتې دي
د ستم زور اوبه دی.
✵ ✵ ✵
که چېرته تم شې ماښو !
اود ساحل پر لوري لار ونه کړې
د وخت پر پاښو به ورستې شي تورتمونو کې
د ستړيو قافلو ديون سپېڅلې کيسې
د ګلکځونو شنې رېښې به چېرته هم
د شنه ساحل پر ازادۍ باندې باور ونه کړي
✵ ✵ ✵
موږ ه د مرګ او د ژوندون پر تمځای ناست يو
ستا هر ګام ته موله زړونو نه
د وينو مشالونه ايښي
موږ دې هر ګام او هر قدم
د خپلو اوښکو په دې ماتو، تکو سپينو مرغلرو مينځو.
راته هادي شه ماښو !
راته هادي شه ماښو !

۱۰/۱۱/۱۳۶۸
کابل

## لاس راکوې او که نه؟

بیا د اسمان دروازې ببرته شوې
باران دی چې وربږي پسې
خو د سرو وینو باران
ځمکه شوه ټوله سرترپایه پر چینو بدله
د سرو لمبو په چینو
دنیا مو ټوله په ناپایه سمندر واوښته.

❋ ❋ ❋

((نوح)) بیا دعا د مرګ
دو خت د ګناه کارو کړې
موږ ګناه کار چېرته یو؟
نه خو مو چاته لېونی ویلی
نه مو پېریان د چا د عقل غله ګڼلې چېرته
خو ځو ډوبېږو بېګناه
د سرو اورونو د موجوو سین کې.

❋ ❋ ❋

ای د ((جودي)) پر غرونو ناستې

زموږ د ((نوح)) بېړۍ!
موږه په خپله لېوني یو
او پېریانو رانه عقل وړی
لاس راکوې او که نه؟.

۱۲/۱۱/۱۳۶۸

کابل

# موسم

بې له تا دوینو شپې شوې، مېلمنه مو شه د کلي
د (زیوس) د کال وړانګې ((اتنه)) مو شه د کلي
ځو چې غار په وینو لوند دی، ګډوي لوګي د غوښو
ثویو سترګی د بو پاچا دی نو وسله مو شه د کلي
د تیارو اوښې ګونډه دي ژوند ترې ساه ایستلی نه شي
د سپوږمۍ د روح اینه شه او ډیوه مو شه د کلي
ورته بوي لولۍ سترګک کړ سکندر تخت د جمشید وسو
دا مړژواندی قوم راوینښ کړه زلزله مو شه د کلي
چې دژوند هره چینه یې تر هر پل لاندې کړه وچه
دا د مرګ په سره موسم کې ته قبله مو شه د کلي.

۲۲/۱۱/۱۳۶۸
کابل

# زما لیلا

زما لیلا د شنو نارنجو د باغچو ونه ده
چې د سپرلي باد يې د ګلو د وږمو سپينو چينو کې
د خپل ټول عمر مزلونه مينځي.
✵ ✵ ✵
زما لیلا د شنه اسمان د لويو کليو
دا سپوږمۍ پېغله ده
چې تورو شپو کې ځانګه ځانګه شي
د دښتو او ځنګلونو تورو څڼو ته
غونچې د مرغلرو وايي.
✵ ✵ ✵
زما لیلا د چنارونو او سپېدارو
ښايسته مرغۍ ده
چې چېرته ښاخ له ونې وزبږي
نغمې ورته دعشق او دپاکۍ غږوي.
✵ ✵ ✵
زما لیلا د هسکو غرونو د سرونو

د کېږدۍ کوچۍ ده
لکه ګوربت يې پر ژورو او پر تړو
کړېدل نه دي زده.

❋ ❋ ❋

زما ليلا د شنو بادونو د چينو
هغه رڼه سترګه ده
چې چېرته ګرد پر رڼا پرېوزي
پرې ورېمې د ازادۍ وروي.

❋ ❋ ❋

زما ليلا د خدای د کلي د شنه باغ
دهسکې ونې سره منه ده اشنا !
چې د جنت ورېي يوازې د خپل حسن
او رنګونو په کاسو مړوي
او تو يو لو ته يې لاس د قدرت هم نه رسي.

۳۰/۱۱/۱۳۶۸
کابل

مېرمنې ته مې:

## ستا وفا

مادې په زلفو کې
يو ګل د وفا کېښوده
تا مې شملې ته
د ځوانۍ شېبې
غونچې غونچې کړې...

# کیسې

سور ژمی اوبه شو د سپرلي هنګامې چېرته دي؟
دا زمـوږ د ترېـو هغـه ډکـې کاسـې چېرتـه دي؟
شـپو کـې لګېـدلې د زلمـې شـهید پـر قبـر چـې
اوس موپرشـهید وطـن دا ورکـې ډیـوې چېرتـه
دي؟
زمـوږه خـو یـاد بړي د پردیـو هـم ببوسـه مـرګ
سـرې جنـډې رپېـږي پرې؛زموږهـد یرې چېرتـه
دي؟
زموږ د ټنګ ټکور هوجرې، زمـوږ د محبت کلي
زمـوږ د شـمله ورو هغـه لـویې د برې چېرتـه دي؟
شـته دلو پټهـو غـرور او هسـک دی د پګړیـو غـر
اوف چـې د پښتو او پښـتونوالې کیسـې چېرتـه
دي؟

# لکه سپېڅلی لوګوس

ته د زنبقو د تنکیو اننګیو
د شبنم څاڅکو کې
دانه دانه د پسرلي ښکالو کې وڅوکېدې
لکه سپېڅلی ((لوګوس))
لکه د وینې د زلمي شهید سوري ټټر کې.

✵ ✵ ✵

ته د باران او سپیونو واورو
له معصومې او سپېڅلې بېګناه لمنې
زما دزړه پر جل وهلې دښتې تو یه شولې
لکه وړمه د سهر
لکه کوچنی ماشوم
دیوې بېوزلې مور د ویر او د دعا په بدل.

✵ ✵ ✵

ته دلمرونو د کانونو
او سپوږمۍ له څاه نه
لو یه ډیوه شوې
په تیارو شپو کې مې وځلېدې
لکه دړوند لاسو کې سترې امسا
لکه د تږي مسافر په مخ کې لو یه چینه.

# ږلۍ

په دې سپرلي څه وشول؟
سپينې وږمې څه شوې؟
سپېرو اغزوته
لکه سترې بازينګر ګډوي
دا پسرلي څه شو؟
دا زړکې چېرته لاړې؟
چې زموږ د غرو په لاله يې درو کې
او دبادونو د پستو سينو تر سيورو لاندې
د ځوزو ډلې او دکاږو کاروان غېږې مونښې
او داسمان غېږه کې
شفق راوسوځېد
په شنو پاڼو يې
ځولۍ، ځولۍ د سرو سکروټو ږلۍ وشيندلې.

# دا کلی مه ورانوئ !

دا کلی مه ورانوئ !
دا کلی مه ورانوئ !
ګورئ چې هلته د شنو ولو د شنو سیورو لاندې
ګورئ د شنې ویالې تر څنګه د جلګو د پاسه
یو کوچنی پروت دی
یو کوچنی ویده دی
او تر وریې لوپټې لاندې
دناز په غېږه کې کوچني شینکي خوبونهویني.
دا کلی مه ورانوئ !
دا کلی مه ورانوئ !
ګورئ چې هلته لکه زړکې زموږ د کلي نجونې
ګورئ چې هلته د بامو پر سر نورسې پېغلې
کتار، کتار
دلمر تر وړانګو خپل پیکي جوړوي
او په مینو ژبو
د پېغلتوب غوږ کې د ځوان هوس سندرې بولي
دا کلی مه ورانوئ !
دا کلی مه روانوی !

ګورئ چې هلته له هغو سپېرو کوډلو څنې
ګورئ چې هلته د دې تورې ترورېمې له غېږې
ساړه څګيروي جګېږي
سوزمن اواز راځي
او اميداورې ميندې
د انتظار د بڼ د سرو ګلونو لارې څاري
دا کلی مه ورانوئ !
دا کلی مه ورانوئ !

# د سفر په لاره کې

مــامې د مینـــې نوبالغــه څړیکـــه ولیدلـــه
چې مې دیاس او دوهمونو دتیـارو شپېې یې
د خپلو سترګود الماسو پـه تېغ څیـرې کړلـې.

❋ ❋ ❋

مــامې د مینـــې نـــو بالغــه څړیکـــه ولیدلـــه
چې د سرو وینو له بسترنه یې د ستورو نجونې
دشپو دزورله ګنهګارې غېږې خلاصې کړلـې.

❋ ❋ ❋

مــامې د مینـــې نوبالغــه څړیکـــه ولیدلـــه
د سبایي ددې وربښمینې وږمې سیورو لاندې
چې د اسمان د وربځو سین نه د سفرلاره کې
د بـاراني ګلـو سـلام تـه غېـږ د ځمکـې نیسـي.

اهداء زما سپین ږیري شهید پلار ته:

# د میلاد په شپو کې

ای ! ددې شنه اسمان په غېږه کې خوب وړې سپوږمۍ !
ای ! په دې شپو کې د پردیسو د سفر ډیوې !
ای ! د ګلونو او د پېغلو، پېغلو وینو پرې !
ته را ته ګورې؟
ته را ته ګورې چې د کړیکو او تیارو ننبه شوم؟
او د ساړه ژمي خوني او ګنهګار ابلیس
زما د ګلانو او نرګسو باغ کې اور وکاره !
ته را ته ګورې !

❋ ❋ ❋

ته را ته ګورې چې محل مې له کارغانو ډک شو؟
او په ویالو کې د هیلیو بچي و سوزېدل !
او زموږ د کلي میندې
د میلاد شپو کې ((بې لاسو او پښو بچیان زېږوي))
ته را ته ګورې؟
ته را ته ګورې چې مې ټول کلی چاړه چاړه دی؟
خلک په نوکو او برچو د یو بل سترګې باسي

او د مالت نجونې
په خپلو تورو تورو څڼو کې ځوزان ټک وهي
آه،
آه نازولې سپوږمۍ !
آه درنا مورې !

# د چړې په څوکه کې

دا د سپرلي د شینکي باد وزرونه چا تړلي؟
چې د سپوږمۍ شونډو کې تورو وربځو ځاله کړې
او د شیطانې شپې په لومو کې د ستورو نجونې
د مرګ له نوکو نه کترې، کترې راتویې شولې.

✵ ✵ ✵

دا د سپرلي د شینکي باد وزرونه چا تړلي؟
چې د تیارو په جهنم کې د اغزیو لښکر
د بلا ربو بوټو له شیدو نه ډک تیونه شکوي
او د نرګسو دا موسکۍ، موسکۍ رنګینې سترګې
د لاس په نوکو باسي.

✵ ✵ ✵

دا د سپرلي د شینکي باد وزرونه چا تړلي؟
چې زموږ د کلي دبامو د سر سپینکۍ کوترې
د زهرجن غبار د زهرو د باران له لاسه
له ډېرې وېرې د ښکاري ګوتو کې ځاله کړې
او د چړې څوکه کې
سپینې دانې لټوي.

# د رڼا کلي ته

زه به د سترګو تخم
دغه رانه کسي ته
د وچې ځمکې په تبجنه غېږ کې وکرمه
او ،
د سينې له باغ نه
به مې د وينو څراغ
تورو کوڅو کې
د لارويو مخ ته، ونيسمه
څو چې په ګډه سره
دې لويو شپو کې
د رڼا کلي ته ټول ورسو !.

# د شپې پر بام

نن مې کور له پنجرې نه
د مغرب له لوري
یوې مرورلې
خوسا شوې ورېمې سر اخیستی
او د ګلانو په چوپتیاکې
د کارغانو ډلو
تیارې پر سر
د سبایي په شبنم ولامبلې
سهر له شرمه
ځان ته ونه کتل
ګلانو خپلې سرې مچکې پرې کړې
او لمر خولې، خولې
د شپې پر بام ویده پاتې شو.

## د رڼا مرګ

لاد نرګسو د موسکا په سپرلني پاڼو کې
غرمو خوړلې،
جل وهلې کربلا ویده ده
د شپو په څڼو کې
د تورو، تورو وربځو خمار
د سپوږمۍ زړه نه
د سرو وینو پیمانې اخلي
او اطلسي باغونه
د سرو ګلابو
د غوټیو جنازې پر اوږو
د پرهرونو
د باغچو داغي ګلونه پر سر
د تور خزان خوني سیلیو ته سلام کوي
او د سپېدو له باغ نه
د تورې دښتې
پر اغزنې چاودې، چاودې سینې
یوه رڼا ولوېده
یوه رڼا مړه شوه
(چې رنګ د لمر یې درلود).

پوهاند دوکتورمجاور احمدزیار ته د هغه
د پنځوسمې کلیزې په مناسبت:

# ته لکه لمر

ته لکه لمر
د خپلو وړانګو
طلايي لمبو نه
ذره، ذره
پر مړاووو شويو
(ګلو) وځځېدې
او،
د شینکي ذهن
د هسک له رڼو ستورو نه دې
زموږ رژېدلي
اوسرتور (بڼ) ته
سالو وګنډه.

# سپرلي ته

سپرلیه راشه پردې کلي راشه
چې د ساړه ژمي قاتلو ، خونړیو شپو
زموږ دباغ د کشمالیو وینې وچې کړلې
او ماښامي سیلیو
بیا د سپوږمۍ دزړه چاودون
د مړو سلګیو شپو کې
د پېغلو ولو او سپېدارو ملاوې ماتې کړلې.

❋ ❋ ❋

سپرلیه راشه پر دې کلي راشه
چې زموږ د کلي د پېغلوټو ګودر ونړېده
دلته د شونډو په خیالي باغ کې موسکا مړه شوه
او زموږ دمیندو مهربانو مورنۍ غېږو کې
شونډې پرتیو دا کوچني ماشومان وسوځېدل.

❋ ❋ ❋

سپرلیه راشه پر دې کلي راشه !
چې تورو دربلو کې زموږ د سفرونو سپوږمۍ
د رڼو ستورو دګلونو دمیلاد په ماښام
کترې، کترې له اسماني دښتو راولوېدله

اود شنو وریو د ځوانۍ او پېغلتوب خوبونه
د وحشي باد په قهرجن ستوني کې ونښتل.

❋ ❋ ❋

سپرلیه راشه پر دې کلي راشه
چې زموږ د پېغلو او تنکیو سرو غوټیو سترګې
د څانګو بڼ نه د خزان په سیلۍ تویې شولې
د تورو شپو د تورو وربځو تر لمنې لاندې
د سرو ربدیو د مور بلاربه ګېډه وڅیرله!!!

# ځاځکي...ځاځکي

بیا ددې تور اسمان په غېږه کې
د ورېځو هادي
په تورو شپو کې
د سپوږمۍ په وینو ولمبېده
او اورني بادونه
د شنو پستو د پېغلتوب د وخت
شینکې خوبونه
تنکي، تنکي سوځوي
او په دې شنو شنو دامانو کې
د هوسیو بچي
او د زیتونو
د تنکي ذهن بې ژبې پاڼې
د خپلو وینو په بدل
ځاځکي د لمر غواړي.

# پسرلی، ږلۍ، باران

سږکال به هېڅکله سپرلی را نه شي
غوټۍ به چا ته شنه موسکا ونه کړي
ځکه دا کلي، دا کورونه
او دا ورانې کوڅې
خپله سپرلی، سپرلی دی
او راټوکېږي
هره ورځ په کې د ښتي ګلونه
زموږ د وينو غوټۍ
سږکال به هېڅکله باران ونه ووري
ځمکه به هېڅکله محتاجه د اسمان نه شي
ځکه: هر ګام او هر قدم
راته باران نيولي
يوه ترېدلي باران
يوې ترېدلې ږلۍ
دا سې باران چې زموږ د پېغلو د ښو له وريځو
له دې يتيمې ځمکې
ان په اسمان ووري.

استاد واصف باختري ته:

# لیک

ته یې سپېڅلې لکه وړانګه او اروا د مرغلرو
د صدفو د سپېڅلو رڼاګانو د ښکلا کعبه یې
ته یې سپېڅلې لکه د روح د ((ادم))
او د جنت د ښکلیو حورو اننګیو او ککیو کې یو روڼ
دانطهور څاڅکی.
✵✵✵
زه دې په پاکو بې ګناه سترګو کې وینم
د دنیا دبېګناهو او سپېڅلو ارواګانو فریاد
یو ګونګ شوی، یو بې ژبې، یو بې وینې، بېګناهه انځور
زه دې د زړه په دې ناپایه سمندر کې هر ساعت
هره شېبه د یوې یاغي ببرۍ د ستر ماڼو د ستړیو شېبو
لیکې وینم،
چې لا خوځېږي پسې، لارې وهي، منډې وهې ځي او دارمان
غاړې ته نه رسېږي.
✵✵✵

کله چې خاندي

ستا مالګینې خنداګانې ماته ویر، ماته فریاد
ماته فغان رابښي
ژړا دې نه پېژنم
کله چې ژاړې نه ژړلی نه خندلی شمه
خو دومره پوه یم چې کاتب د مخلوقاتو زما وستا
د ژوندون پاڼه د خپل ((قار)) او له ((مستۍ))
ډکو شېبو لیکلې
چې ژړا نه پېژنو
خندامو هم نه ده زده.
ته یې سپېڅلی لکه وړانګه او اروا د مرغلرو
د صدفو د سپېڅلو رڼاګانو د ښکلا کعبه یې
ته یې سپېڅلی لکه روح د ((ادم)).

۲۸/۱/۱۳۶۹
کابل

## سیوری (۱)

دا څو ونې
دا څو ولې
دا څو څانګې
دا زموږ د وطن نه دي
دوی نه بوی ځي د پردیو.

❋❋❋

دا سپېڅلې خاورې وایي:
دوی زما د غېږې نه دي
دا دباد د مور اواز دی:
چې ما تی ورکړي نه دي.
د لمر وینې وهي کوکې:
چې دوی ما لوی کړي نه دي.

❋❋❋

کاڼي، غرونه راته وایي
دا سیندونه راته وایي:
پام چې څنګ له یې ورنه شې
یو ساعت شي درته سیوری
بل ساعت درنه ساه اخلي.

۹/۲/۱۳۶۹
کابل

# شناختې

يه ښکلې، ښکلې
يه سپېڅلې ملايکې !
دې مالت او په دې چم کې
ګناهونه هومره ډېر دي
چې تا هېڅ
د خپل وبال او د ګناه غاړه کې
څوک نه ويني،
وايه ! په دې لار چې راتلې
هغه زموږ د پلرو
او د نيکونو قبرونه څه رنګه وو ؟
ښه يې وه؟
خاوره يې وه؟
شناختې يې وې او که نه؟
موږ خو د پلار او د نيکه هغه سپېڅلي
او درانه قبرته نه پرېږدي څوک.
۹/۲/۱۳۶۹
کابل

# ګامونه او قدمونه

سیلۍ ! د کومو اورنیو غرو له څوک دې
زموږ کلي ته لاره کړې؟
موږ چې قدم پر قدم اخلو
ستا د غېږې د اورونو پر سکروټو
او سپرغیو لګو.
چې د غنمو فصل شین شي
او د غوږګو نازولي بچي قد وباسي
د دنیا ټولې سرې لمبې مو مېلمنې شي
د کبلو او کبانو د سپېڅلو خنداګانو
د معصومو څپو وینې زبېښې.

❋ ❋ ❋

سیلۍ، له کومې نا سپېڅلې او بدبختې لارې راغلې
د ګناه اودویرونو ساز پر شونډو
زموږ د ژوند او ددعا او عبادت کلي ته؟
موږ چې قدم پر قدم اخلو
هر قدم مو د کربوړو پر قدم او پر پلونو لګي
قدم زګېروي کوي
ګامونه چغې وهي
لارې له شرمه لارې نه راکوي.

❋ ❋ ❋

سیلۍ، قدم چې دلته اخلې باغ له شرمه

خپل ورمېږ غوځوي

موږ له غوټیو او غوټۍ له موږ مخونه نیسي.

وایه ته څوک یې؟

د کوم ځای یې؟

او له کومه دې زموږ د دعا او عبادت کلي ته پښنه کړې؟

۱/۳/۱۳۶۹

کابل

## تو پیر

دا د شنه اسمان ناوکۍ
څو مره مینه ګر کې ده !
شپې چې د ګناه شي
هر څو ځان په خیرو ولړي
دا راته موسکۍ شي
د خپل ځان په سپینو پیو مې څادر مینځي
دلته مې د ځمکې
دا سپین سرې نیا میره شي
هر ساعت راته قبلې
د شنو ډنډونو په اوبو ولي.

۹/۳/۱۳۶۹
کابل

# کلی

لښتي وچ شول
ویالې ورانې
سین د تورو کاڼو غر شو
اوس حیران یم چې د کلي
دا هیلۍ به چېرې لامبي؟
❋ ❋ ❋
نه پوهېږم، نه پوهېږم
ای د کلي مازېګره
ها زموږ د کلي چم کې
هغه سپینه کبږدۍ څه شوه؟
هغه شنې څپرې څه شوې؟
ها لوګرې جنۍ چېرې؟
❋ ❋ ❋
تا ته یاد شي مازېګره!
د ګودر د غاړې لیکې؟
لکه باغ د ښاپېریو،
لکه لارې د کوترو؟
❋ ❋ ❋
تاته یاد شي مازیګره!

هغه شنې د برې د کلې؟
پکې هسک د شملو غرونه
پکې وربځې د چلمو.
❋❋❋
نه، نه ودان دی
کلی ودان دی
یوه ځاله په کې نه شته
ها د ښکلیو توتکیو
یو نغری هم اباد نه دی
دا بیو د لاس نښه.
❋❋❋
لښتې وچ شول
ویالې ورانې
سین د تورو کاڼو غر شو
اوس حیران یم چې د کلې
دا هیلۍ به چېرې لامبي ! !.

۲۵/۳/۱۳۶۹
کابل

## چغه

وخت د دیدن اور شو د لمبې پر سر ولاړ یمه
څه وکړم پښتو ده د وعدې پر سر ولاړ یمه
څاڅکي څاڅکي راغلم ستا د حسن پر بام پرېوتم
اوس چې پر ځان پوه شوم د ناوې پر سر ولاړ یمه
ته خو به تندی د شپې نن بیا پر کاسو وولې
زه څومره کمبخت یم د توبې پرسر ولاړ یمه
لږ خودې کاږه واږه بانه را باندې سیوری کړه
خیر دی مسافر یم د غرمې پر سر ولاړ یمه
اوښکه د غزل مې د ساحل د غاړې چغه شوه
ډوبه مې ببړی ده د څپې پر سر ولاړ یمه.

۱۴/۴/۱۳۶۹
کابل

# د پښتو خبرې

ماتــه انکـــار تاتـــه د هـــو خبـــرې نـــه دي زده
تـــا تـــه د راتلـــو ماتـــه دتلـــو خبـــرې نـــه دي زده
تـــه خوبـــه مـــانې د وعـــدو بيا راتـــه ودانـــه کـــړې
ماتـــه لـــه دروغجنـــو د ګيلـــو خبـــرې نـــه دي زده
ستا خوبـه امېـل لکـه سـپوږمۍ پـه ټتـر وزانګـي
ماتـــه دنـــاخيرو ګرېوانـــو خبـــرې نـــه دي زده
ته دخم مېلمه شه، سر تر پښو د مستې څانګه شه
ماتـــه يـــې د اوښـــکو دنشـــو خبـــرې نـــه دي زده
زه بې له پښتو نه په ټول ژوند پر بل څه پوه نه شوم
ســـتا لکـــه مغلـــه د پښـــتو خبـــرې نـــه دي زده.

۳۱/۲/۱۳۲۹
کابل

# دوير مالت

ته راته خانده زه سلګو سره خوشاله يمه
ته پسرلی شه زه اغزو سره خوشاله يمه
د وير مالت کې دهوس د ادا نه شته قدر
د غم موسم دی له غمو سره خوشاله يمه
ستوري دې اوري پرخې پرخې پر خوب وړي نظر
زه لکه شمعه شوګيرو سره خوشاله يمه
دزلفو وربځې وروه بلې دې نه شي ډيوې
د ژمي شپه يم له تيارو سره خوشاله يمه
نادان قاتل راته په لاره کې کرلي سپرغۍ
زه لکه دود لويو لمبو سره خوشاله يمه
څومره خوږه شوه په دې چم کې د وحشت ارتقا
چې يې ښاغلو لېونو سره خوشاله يمه.

۳۱/۹/۱۳۶۹
کابل

# پسرلی

پسرلي شو ، پسرلی شو
پسرلی مې مسا پر پر کاله راغی
پسرلی مې چې کري
ګلابي حورې
پسرلی مې چې د خدای
له مهربانو سترګو وورې.
❋ ❋ ❋
پسرلی شو ، پسرلی شو
هره لوښته د وطن مې
د نرګس ډکه کمڅۍ شوه
هره لښته مې د کلي
تکه شنه د جنت څانګه
غنمي وږمې په زلفو
غرنۍ کوترې راغلې
د هوسیو لونې ناڅي
د شنو دښتو پېغلتوب ته.
❋ ❋ ❋
پسرلی شو ، پسرلی شو

د لمر سرې تورې يې ښکل کړې
لمبوي درنا ناوې
غوڅوي د شپې رګونه
کړي د ښتو د اسمان کې
د انځرو شنه باغونه
سپوږمۍ سپین رباب اخیستی
رانه ستوري نڅاګر شول.
***
پسرلی شو، پسرلی شو
تودوې مې سرې مینې
زور خمار پر عقل ولم
سد مې اخلي د تاک وينې
ګناهکار ساقي ته ناست یم
راکوي جنتي ((پینې))
هره پانه د هر ګل مې
دې یاغي سرته پګړۍ شوه
هر يو کانې مې ګلاب شو
هره پرخه مې غوټۍ شوه.
۲۱/۱۲/۱۳۶۹
کابل

## کلیزه

نن مې د ښکلې لور د حسن پر سپرلیو
یو بل ګل وټوکېد
نن یې د ژوند پنځلسم ستوری را برشو
د کمڅو پر ماښام
نن یې د تاند عمر د لښتې پېغلتوب ته
بل ګهیځ شین شو
لور مې نن پېغله شوله.

❋ ❋ ❋

نن مې وعده وه، چې دزړه دو چې د ښتې
د سمسورې غوټۍ جشن لمانځم
نن مې وعده وه چې به ناوې کړم
د کور پنځلسمه سپوږمۍ
نن مې وعده وه چې سلګۍ ورته
د شمعو دودوم
او بلومه ډیوې
خو نن د خپلې بدنصیبۍ سرې غوټۍ
موسکا ته کېنناستم
مایې د باغ د پېغلتوب
ددې تنکۍ شېبې سلام وانه خیست
ما شمعې ونه شوای راوړای

ورکې ډېوې بلې نه شوې
مايې ترخو شونډو ته
رنګ د خوږو هم ور نه کړ
مايې پر زلفو يو کوچنی پوړنی
نه کړو راخوړ.
❋❋❋
او نن مابښام چې ټوله ورځ
روژه په خوله
دلوی الله پر عبادت بوخته وه
په دې ګناه چې
په نغري کې
مابښامي ټېپر ترې وسوځېدل
مور يې له شپې نه
تر سبا ورته غمبورې
په څپېړو شنه کړل.
هو !
مورډ دبچو کليزې داسې لمانځو
زموږ د ستور داسې دی !!!.
۲۶/۱۲/۱۳۶۹
کابل

## عبدالباري جهاني ته(۱)

دهغه د شعر په ځواب کې:
مساپر خيالونه راغلل
مساپر له لرې غرونو
مساپر له لوی سفرنه
يادوي ((د ماضي پاڼه))
رانه پوښتي د نن وينې.
❋❋❋
اوس به څنګه ورته وايم؟
اوس به څنګه ورکړم ((زيری))؟
چې يه سترېه مساپره!
هر لوېشته د د دې کلي
چې د خدای (ج) له خوبه شنه وه
اوس بوازې د کارغانو
او زاړه شېطان کېږدی ده.
❋❋❋
اوس به څنګه ورته وايم؟
چې د غرونو څنګل لوټ شو
د څېړيو څڼې پرې دي
ځالې ړ کې له کربوړو
د چنارو په سينه کې.

❋ ❋ ❋
اوس به څنګه ورته وايم؟
چې د نن مينزو کړې ماتې
د پرون ښکلې هنداره
زمونږ بوډۍ مورې يې کړه بوره
ټول وطن شهيد شهيد شو
دلته مري د ماضي فصل
دلته مري د سبا زړي
شمله ور غرونه مات شوي
را ميراتې لوټې دي.
❋ ❋ ❋
اوس به څنګه ورته وايم؟
چې مې مري د مستۍ کلي
دلته وير دي خندا نه شته
د مرګي لوبه جاري ده
چا خندا راته وژلې
چامو کور پر انګار وويشت
چا مو پخو چړو باندې
دبچيو مرۍ پرې کړې.
❋ ❋ ❋
اوس به څنګه ورته وايم؟
چې د نجونو تور وربل کې
سپرلی شين شو د ځوانو

دلته اوس دګودر لاره
د اغزو لښکر نيولې
اوس د ښکلو د سرو شونډو
هغه شنې موسکاوې مړې دي
اوس د ښکلي ريبار ژبه
د اغيار پر نوکو وتې
دلته لويې د پرې نه شته
د هجرو تغر ټول شوی.
❋ ❋ ❋
اوس به څنګه ورته وايم؟
چې شهيد پلو پر سترګو
د وطن اد کۍ ژاړي
ړنګوي د دعا څلي
هسکوي د ښېرو غرونه
((زور)) له لوړ ګرېوان نه نيسي
د سرو اوښکو پېلاسونو
ترېنه غواړي د خپل فصل
ددې شنو دانو مرګونه
چې نامردو بزغليو کې
د مور څه قدر نه شته.
❋ ❋ ❋
ته دې ورک سيوري ته ژاړې

زه له خپل سیوري نه سترړی
ته له ځان سره په جنګ یې
زه فلک سره په جنګ یم
راته وایي:
ژمی درومي
توتکۍ به بېرته راشي
لکه وړانګې د سپرلیو
په وربښمین وربښمېن وزرونو.

❋ ❋ ❋

زه وایم:
ای د ټولو ربه !
که ته چېرې توتکۍ وای
ته راتلې زموږ پر کلي؟
لکه وړانګه د سپرلیو
په وریښمین وربښمین وزرونو؟

=۱/۱/۱۳۷۰
کابل

## تاک

چې يې دنيا ته سترګې راکړې
او غونچې غونچې شوې
پرهغه ورځ مې د مور سرې سترګې غوټۍ شوې
بېرته ونه غوړېدې
چامې پر تړيو او ماشومو شونډو تې کېښنود ،
پر هغه ورځ هم دلمر سرې وينې شوې وچې
او يوه شېبه راونه وريدې
شپه شوه ، شپونکۍ ، سپوږمۍ د ستورو درمو
وړيو وريو پسې هم ونه وتله
تمامه شپه د مړو سلګيو پرزانګو ويده شوم.
❋ ❋ ❋
سهارچې پاځېدم
زموږه د کاله د سرو انګورو نرۍ ونې راته ايښې وه

غولانځه پر سپېرو او جل وهلیو شونډو
ما ورته مور وویل.
اوس هغه څاڅکی د انګورو مې پر زړه باندې
نیالګی ولاړ دی
څو چې لو یېږم ښاخور تاک مې
له ژوند سره سم لو یېږي
زه او تاک دواړه له یوې ریښې یو.

۱۰/۳/۱۳۷۰
کابل

# دلبرۍ

هرڅو مره چې پې مخې دي او ښکلې دي دلبرۍ
هغــــو مره ســـتمګرې او قـــاتلې دي دلبـــرۍ
پــوهېږم څــو خونخــوره مېلمنــې وې درنــه لاړې
زړګيــــه ! خپــــه نــــه شــــې نــــازولې دي دلبــــرۍ
نه لوز، نه يې وعده، نه يې رښتيا ده چا ليدلې
دې چم کې د وفا له غرو لوېدلې دي دلبرۍ
زمونږ که ځواني اورشوه د دوی ګل له څنو پرېوت
دا هسې پر خپل حسن غولېدلې دي دلبرۍ
توبه ! لکه دخوار فقير دې خپلې غوسې وسوم
درنــې دي، پېښــتنې دي اوښــأغلې دي دلبـــرۍ.

۲۹/۳/۱۳۷۰
کابل

## ازادي

دلته ځوک نورد پسرلیو
دګلونو او وږمو په سوچ کې نه دي
دلته چاته نور زموږه د کورونو
دبامو سپینو کوترو ته
دانې ورکول نه زده.
✵ ✵ ✵
دلته دښتو کې د باد له کوڅې هېر دي
چې بیا ښکل کړي
په پردېسو وچو شونډو
د لوګړې پېغلې څڼې
دلته چت پر کاله نه شته
چې دا ستړې توتکۍ پکې دمه شي.
✵ ✵ ✵
دلته وینه، مینه مړه ده
دلته فصل د لمر وچ شو
دلته قتلې دي دعشق اود ځوانۍ
او پېغلتوب ددې سپېڅلو ګناهونو
د جنت ښکلې هنداري.
✵ ✵ ✵
دلته ساه په باغ کې نه شته

دلته مات د ګل انځور دی
دلته بڼ کې زرغون شوې
د ساراوو د زړو بګوو چغې.
❋❋❋
موږ د مرګ کام کې ژوندي یو
د ښکاري ګوتو کې ناځو
د سبا کښت یې رالوټ کړ
دا دنن شپېو د بوانو
د پرون پانې ورستې شولې
د مړو اود خانو په لاسونو
ازادي خو وي همداسې
ژوند خو داسې وي کنه !؟

۱۴/۵/۱۳۷۰
کابل

## څو منثور شعرونه

مصطفی جهاد ته:

زموږ مړینه

-۱-

پرېوزه،
ارام ویده شه !
زموږ مړینه داسې ده
لکه زوکړه مو چې وه
او زوکړه مو
لکه مړینه مو چې ده.

❋❋❋

هغوی چې د خپلو کورونو
پر دسترخوانونو
ډوډۍ خوند نه ورته ورکوي
ژوندي وي.
پرېږده !
هغوی چې د پردیو د کاروبار
د افیونو او الکولو په چینو کې
د لغړو فواحشو
د پستو او مرمرینو غولانځو پر غرونو
یوه شېبه خوب

زموږ د ټولو په ژوند نه ورکوي
ژوندي وي.
او پرېږده !
هغوی چې ویاړ ګڼي
د خپلو ناوو پېغلتوب
له هغوی نه
په پردیو کټونو کې واخلي
ژوندي وي.
او،
زه او ته
چې ژوندي وو مړه وو،
نو،
پرېږوزه
ارام ویده شه !
زموږ مړینه
لکه زوکړه مو چې وه
او زوکړه مو
لکه مړینه مو چې ده.
۳۰/۵/۱۳۷۰
کابل

## درد

-۲-

د پلار مړینه مې ولیده
او دوړونو زړه چاودون هم
لوږې مې د بږې وزغملې
او تندې هم
خو یوه بې دومره دردوونکې نه وه
لکه:
نشه چې نه وي پوره
او ښیښه پای ته ورسي.

۱۷/۲/۱۳۷۰
کابل

## پېغمبران هم ژاړي

-۳-

ونې ! ولې ژاړې؟
ښاخونه يې رانه غوڅ کړل
چا؟
ښاخ مې،
ومې روزه، ومې روزه
چې رالوی شو
تبر ته لاستی شو.

✵✵✵

- موږې ! چېرته ځې؟
- د خدای کلي ته.
- مګر دا لويه نړۍ؟
- نړۍ خو د دېوانو ده.
- مېږه دې شته؟
- رانه ورک شو.
- او زامن؟
- لرم يې: قابيل او هابيل.

✵✵✵

- مسيحه ! ته او اوښکې؟
- اوښکې نه، وينې.

- دچا له لاسه؟
- د يهودا له لاسه.
- ومې روزه، ومې روزه
- چې رالوی شو
- دښمن ته يې وسپارلم.

***

- وطنه! ته؟
- او دا دی زه هم ژاړم.
- څوک دې ژړوي؟
- ملت مې.ملت مې دوه برخې شو:
- قاتل او مقتول
- درېیمګړی نه لري.

۱۸/۳/۱۳۷۰

کابل

## برخه

-۴-

هغه ورځ مې چې غوښتل
کمڅې يې ورته له ګلونو ډکې کړم
د دښتو او بڼونو ګلان
سيليو يووړل
او نن چې، ګلان بيا راوغوړېدل
هغه نه شته.

❋❋❋

هوکې !
زموږ برخه همدا سې ده
تېر کال مو چې ويالې
له اوبو ډکې وې
زموږ د کلي ژرنده ورانه وه
او اوس چې
د کلي ژرنده بيا ودانه ده
په ويالو کې اويه نه شته.

۱۲/۲/۱۳۷۰
کابل

# دنیا

زما زړه تر جهان لوی دی د حهان تنګه سینه ده
چې زه نه په کې ځایېږم دا دنیا څومره وړه ده؟
زه د جل د غرونو تږی پرواګیر نه یم د لپو
ساقي ! چم مې د ګوټ نه زده زما بحر پیمانه ده
ما مسیح حیران لیدلی د خپلې مور د عفت سوال ته
ما چې نوم د عشق اخیستی راته لښته زمانه ده
موړ یې څنګ ته د ګورناست یو پوکوو په کې ساه ګانې
ګنې دا دژوند ډیوه خولا پخوا تر ازل مړه ده
د تقدیر کچکول پر غاړه مرګ نه خیر د هستۍ غواړو
دا دنیا څومره لولۍ ده، دا دنیا څومره سپېره ده.

۳/۲/۱۳۷۰
کابل

## مساپر

څه د ښکلو اوښکو ستوری مساپر پر خاورو خوریم
د چا سترګو نه لوېدلی یوټوټې ټوټې انځوریم
اوس به چېرته پسې لاړ شم نا اشنا کوڅې دي ډېرې
دا دزړه تیر به مې څوک وي چې یې زه د شګو کوریم
چې یې ټپ په سترګو ړوند کړم ترې سرو بادونو یووړم
دا د چا د نظر دودیم؟ دا د چا د نغري اوریم؟
قتلوي مې چې خوبونه، لېونی خیال مې چې وژني
دادکوم پښتون شملې ته د مغل دخولې پېغوریم
ځغلوم اس په دریاب کې، ګرځوم بېړۍ په وچه
دا دکوم جنون امسا یم، دا دچا دعشق شبکوریم؟

۸/۲/۱۳۷۰
کابل

# پياله

دا ځواني مې صدقه شه، خو پياله مې تشه مه شه
د زړګي لپه چپه شه، خو پياله مې تشه مه شه
ښه پوهېږم چې مې وژني دا بربنډې د تاک پېغلې
عمره ! يو ځاځکی نشه شه، خو پياله مې تشه مه شه
څو يې څښم نه تمامېږي راته څه د زهرو سين شو
دا دژوند وچه چينه شه، خو پياله مې تشه مه شه
دا د دوه کاڼو دنيا چې دومره ګرانه پر موږ پلوري
لکه دود پر اور خوره شه، خو پياله مې تشه مه شه
نه په بر د عمر خوښ يم، نه په ګز د ژوند خو شاله
ټول دلوڅو پښو ناره شه، خو پياله مې تشه مه شه.

۷/۷/۱۳۷۰
کابل

## لاره

د ژوند مزي خو لنډ شول هغه شپه قراره چېرته ده؟
یاران د لارې ډېر دي خو ملګرو لاره چېرته ده؟
کاروان مو د سپوږمۍ تر څنګ بر شو، خو زموږ مینه
چې تاویل څاروانه! اوس د خدای لپاره چېرته ده؟
ساقي! راځنې وچې شوې ډالۍ ورته د زړه لپې
زموږ د وینو تږې دا ویده خماره چېرته ده؟
موږه ساده ګان یې د دوکو پر ژرنده دل کړلو
ای عشقه! د دروغجن دیدن هغه ریباره چېرته ده؟
دا دومره پېرۍ شپه کې د سبا سبا ناري چې دي
شیمه مو د نیمزالو ډېوو تر سهاره چېرته ده؟

۳/۸/۱۳۷۰
کابل

## کب

سیندلا همغسې
ځپاند روان دی
او ا سپین ږیری جاله وان
خدای زده
پر کومې دې شګلنې غاړې
خوب وړی دی نه ویښېږي
سترګه مې ورپېږده
او ستا دکور کوتره راغله
ستا راکړی ګل يې
زما شملې نه يووړ.
زه پوهېږم چې
نن به دا سې وشي
او نور به هېڅکله
درونه رسمه:
بېګاه مې خوب کې
له لاسونو ځنې
کب لوېدلی !

۳/۱۰/۱۳۷۰
کابل

## مینه

نیمه شپه، نیمه شپه ده
د سپوږمۍ څانګو ته ناست یم
یو څو سیوري راته ناځي
لکه ډمې عربانې.

❋❋❋

د جنت پیالې یې راوړې
څه وربښمینې پرښتې دي؟
رانه اخلي تاج د عقل
د جنون جوغه یې راکړه.

❋❋❋

اوس د زړه پر پاڼو لیکم
ستا د دوه سترګو غزلې
لکه خدای چې مینه لیک کړه
دا د حورو په لاسونو.

۱۹۹۱ جنوري
مسکو

# څانګه

د کـومې شــپې بلـه ډيـوه يـې څـانګې !
چې مې د زړه پر کور خوره يې څانګې !
لــږ صــبر وکــړه چــې وزګــار خـو شــمه
څنګــه بــې صــبره پيمانــه يــې څــانګې !
شـــېبه د ژمـــي د راتلـــو خـــو نـــه ده؟
داسـې چـې بيـا کـږه وږه يـې څـانګې !
نـه چـې يـاغي شـونډو مـې وکـړ تېـرى؟
لـه شرمه بيـا چې تکـه سره يې څانګې !
څنګـه د عشــق پـر قيـام نـه کـړم بـاور؟
چې راتـه سـيورى او شـمله يـې څانګې !
د وخـت سـيلۍ دې رانـه وړاى کلـه شـي
د پښــتني کــور مبلمنــه يــې څــانګې !

۱۹۹۱ جنوري
عشق اباد

# زه او غر

تاسو مې پېژنئ؟
زما د تن هډوکی
او د خاورو په رنګ مسته وينه
زما د غرونو د هستۍ نښې دي
ما مې د غرو له تيو پېۍ رودلي
زما د کور د بامبوتۍ له پاسه
غر ولاړ دی
او په انګړ کې
هر قدم ته د څېړيو ونه،
په هره يو ښاخ کې يې
د لمر د زېړ دلو کيسه
او شين اسمان يې
خپلو سترګو ته
له پاڼو نه
رانجه پوروي.

ماته د خوب او سترپیا
چم نه دی زده
تیارو ته ستوري،
د سبا بربنډو پېغلو ته
لمنې ګنډم
او کرۍ ورځ سترګې په لار تېروم.
سترګې په لار یم
خو د څه لپاره؟
نه پوهېږم !
وه چې زما تر سیوري هاخوا
دا دنیا نن څومره ښکلې ښکاري
دریغه !
له شرمه راته پاس
د کتو وس نه لري.

۲/۱۱/۱۳۷۰
کابل

لوی احمد شاه بابا ته:

## د غمنو وړی

-۱-

د غنمــو وړی زمــا د پګــړۍ ځانګــه
د غنمــو وړی زمــا د غرونــو ژبــه
د غنمــو وړی زمــا د ماضــي درمنــد
د غنمــو وړی زمــا د سبا تــوره.

***

د غنمــو وړی زمــا اوښــکو تکــی
د غنمــو وړی زمــا د موســکا پانــه
د غنمــو وړی رنــګ د ښــا پېریو
د غنمــو وړی زمــا دیــار ســندره

***

د غنمــو وړی لمــر د شــپو د تیــو
د غنمــو وړی ســیوری د غرمــو مې
د غنمــو وړی وړم د ســپرلیو
د غنمــو وړی تــن د شــنو خپړیــو

***

-۲-

د غنمو وږی پاس پر شملې شین شو
طلایي تاج یې نسکور کړ له سرونو
د غنمو وږی شنه دویار جنډه شوه
لکه سره وینه ایت د پاني پت شو.

*** 

د غنمو وږی توره د برېښنا شوه
د دښمنو وربځو ګېډې یې کړې څېرې
د غنمو وږی زما د غرونو باد شو
له هیبت نه یې زمرو ګیدړې راوړې.

*** 

د غنمو وږی وینه د غیرت شوه
په ککرو کې یې اور د ایمان پو کړ
د غنمو وږی زما د پلار شمله شوه
ټیټېدل یې لکه ستوری چېرته نه زده.

*** 

د غنمو وږی اور شو پرنا مردو
هره لوښته یې تنور کړه پر بګوو
د لمر بڼ یې له لوید یزې سیلۍ خپل کړ
د شمال د باد ترخه ژبه یې پرې کړه

***

د غنمو وږی ټول هیواد شو
د غنمو وږی ټول ولس دی
د غنمو وږی زما د وطن هسک شو
چې تر غاړې یې د بلا لاسونه لنډ دي.

***

د غنمو وږی زما د پګړۍ څانګه
د غنمو وږی زما د غرونو ژبه
د غنمو وږی زما د ماضي درمند
د غنمو وږی زما د سبا توره.

۳/۱۱/۱۳۷۰

کابل

# کښېنت

دزلفو شپې دې راوړې خونسکورې درنه نه شي
ته ګوره هغه کړې وعدې نورې درنه نه شي
بلد نه یم په غېږ کې د سپېځلې ګناه چېرې
داشونډې وچې روږدې دي سمسورې درنه نه شي
ما څښلي کله نه دي ساقي تور شراب په جام کې
ستاسترګې تکې سرې ښې دي چې تورې درنه نه شي
کمځی دې راته دارکړه چې منصورشمه ژوندی شم
وېرېږم له هغې نه چې منګورې درنه نه شي
له وربځو نه خیر نه شته کښېنت مو هم له سینده لېرې
سپرلیه ! څو غوټۍ دي چې کمزورې درنه نه شي.

۱۴/۱/۱۳۷۱
کابل

## عبدالباري جهاني ته (۲)

دهغه د شعر په ځواب کې:

مادرته نه وې چې یاغي شو اولس؟
مادرته نه وې چې ژړېږي وطن؟
مادرته نه وې چې نړېږي غرونه؟
مادرته نه وې چې ورانېږي وطن؟

❋❋❋

مادرته نه وې چې د کارغیو سیوری
تاج د شیطان شو لوټوي پرښتې؟
مادرته نه وې چې د حورو حسن
پرده مو پلوري، خرڅوي پرښتې؟

❋❋❋

مادرته نه وې چې دنن سندره
غریبه اوښکه شوه په اور وسوه؟
مادرته نه وې چې ډیوه د سبا
ماته هنداره شوه په کور وسوه؟

❋❋❋

مادرته نه وې چې هادرنې لوپټې
د اور او وینو پر ګودر زانګي؟
مادرته نه وې چې هاسپېڅلې تسبې
د څو لولیو پر تتر زانګي؟

***

ما یو زخمي تن د وطن ژړلو
اوس له وطن نه وطنونه جوړ شول
ما یې لا یو درد دواکړی نه و
اوس یې له هر ټپه ټپونه جوړ شول

***

تا ویل مه ژاړه جوړېږي وطن
زه ویم چې نه یې ناخبر ښه یې
تا ویل اور دی بیا ګلان دي پسې
زه ویم له دې اوره بهر ښه یې.

۱۵/۱/۱۳۷۱

کابل

# وينې پر کاله

اوښکې د شېبو که دکلو وې په سر واوښتې
لپه وې اوبه، که په نېزو وې په سر واوښتې
ټول عمر باران و ، يوه شپه مو رڼه ونه ليده
پوه نه شوودژمي که سپرلو وې په سر
واوښـــــــــــــــــــــــــــتې
نه به وايي ژبه دغه ګونګ زړګی شاهددی خو
لښتې د کمڅوکه توپانو وې په سر واوښتې
خيرکه مو سر لاړ د پښو پل مو ژوندی پاتې
دی
څوورځې کانې په قافلو وې په سر واوښتې
سترې نه شوې غاړې زمونږ اوداپخې چړې ددوی
وينې پر کاله د پښتنو وې پر سر واوښتې.

۱۸/۱/۱۳۷۱
کابل

# بیدیا

سپېره بیدیا ده په کې پل د بنیادم نه شته
یو څو پېریان دي له پردیو غرو راغلي
بربنډ ېږي، ناڅي، ناڅي
چې تیاره شي بیا سینې پر خپلو میندو سړوي
پر خواږه خوب پرېوزي.

❋❋❋

د زهرو ونه ده ولاړه
پر بیزو ادي یې سیوری کړی
بیزو د زهرو پر کې خوري هره ګړۍ ورځنې حمل اخلي
د ورځې د برش، څلو ښنت بچیان زېږوي
د ورځې د برش، څلو ښنت ځوانان شي
بیا قتلېږي

خو بیزو ادې پرګې خوري
او لیګا ده هره ورځ نوي بچیان زېږوي.
پېریان ګډېږي
د بیزو ادې په ویر او پر خواریو خاندي
چې شپه تیاره شي
بیا سینې پر خپلو میندو سړوي
پر خوارېه خوب پرېوزي
سپېره بیدیا ده په کې پل دبنیادم نه شته.

۱۹/۱/۱۳۷۱
کابل

## ګیله

زه دې د کومې ښې ځوانۍ په خاطر؟
ستاد نیمګړې مینې
د سمسورتیا په هیله
پیالې په سر اړوم؛
او زه دې کومو مهربانو سترګو
ته شین غزل ولیکم؟
پیالو ته شونډې
د غزل زلفو ته لاس نه ورځي
کله چې زړه کې مې یې.

۲۲/۱/۱۳۷۱
کابل

# شيخ

شيخ بې نغمې ګډېږي
شيخ د جومات کړکۍ ترلي د واټونو د بوالو ته ناځي
شيخ د خپل عشق د باکرې مور
له ټپونو نه شراب څښلي دي.

❋❋❋

شيخ لکه سپينه پاغونده
بادونه يوسي،
بېرته راشي
او خپل مست سيوري ته ښه وخاندي
شيخ د کوکنارو ګلان وټومبي په تورو څڼو
شيخ توره شپه شي
په غلا غلا د زليخا دمخ پوړني پسې لاس غځوي.
شيخ بې نغمې ګډېږي
شيخ د خپل عشق د باکرې مور
له تيونو شراب څښلي دي
شيخ تورو څڼو کې ټومبلي
د کوکنارو ګلان.

۹/۳/۱۳۷۱

کابل

ګرېږ

ګړی، پېړی، ده چې د نیمې شپې له تکې ځنې نه خوځېږي
ستوري سوځېږي،
شمعې مري،
د ترږمیو لېونی، د زنداني شپېو دژوند خړې آینې ته ناځي
کانه په لارکې د مېږیو د راتلو شپېو ته غوږ ایښی دی.

* * *

د دوو وروستیو د کمځو پر سر سپوږمی، بندي ده
او مساپرې پښې د غوږګو دکاله پر لوري لاره باسي
متې زخمي دي،
بې نو کانو ګوتې څنو کې د شپې پاتې دي
ړوند دګلونو د رنګونو تماشې ته ناست دی.

* * *

ګړی، زموږ د ژوند سپېڅلی او محکوم کلام دی
ګړی، پېړی، ده چې کږه ملا سمولی نه شي
ګړی، غریبه
د پېړیو د سکون پېټی په سر ګرځوي.

* * *

کانه په لارکې د مېږیو د راتلو شپېو ته غوږ ایښی دی.
ړوند دګلونو د رنګونو تماشې ته ناست دی

۱۴/۳/۱۳۷۱

کابل

## پوښتنه

دومره قدری یادشي چې یوڅه خو دې په تله ووې
پوه نه شوم قسم دی چې تا څه ووې ما څه ووې
ټوله شپه رښتیا دې پټ د زړه کور کې ساتلی وم؟
یو غلچکی خوب و په کاله مې تېرېده ووې
ستا د نظر تندر ته مې ټول خوبونه درمند شول
چاراته له وربځو نه خبر د بارانه ووې؟
ویښ وم که ویده وم خدای زده ډېرې مودې تېرې شوې
مینه دې له زړه وه او که هسې دې په خوله ووې؟
کړې مې وعده وه چې دې بیا په کلي نه درځم
هېره وه له مانه خو ریښو د ګرېوانه ووې
وپوښته رښتیاترې کوم مغل دې چم کې شته که نه؟
څومره سپکې سپورې مېلمانه ته پښتانه ووې؟.

۱۴/۵/۱۳۷۱
کابل

## دا کلی، دا وطن

کلونه تېر شول، ځواني مري
او درنګونو پسرلي
زموږ پر سوي اوغریب مالت
ګذر ونه کړ.
وږمو د ستړي شپون
دڅڼو په ځنګلونو کې نڅا ونه کړه
دتورو دښتو دکېږدیو د وریو ژبې
بیا وچې شوې.
❋❋❋
بیامو دکلي د چنارو
پر نیم سوېو تنو اور بل شو
د شنو غنمود وربښمین فصل کمڅیو ته یې
رنګ بیا د لوګیو ورکړ
بیا یې د ستورو سره ټوکرۍ
د تورو وربځو
د شیطان مریي ته وبښله.
❋❋❋

کلی، وطن
بیا دڅپلیو دمېخونو جنګ کې ساه وباسي
کلی، وطن مو
دخو تورو تجمل ته
بیا له سره قربانېږي
هر قاتل یې
د زخمي ځان له هډو کو ځنې
لاستی د ((بېرغ)) اخلي.
❋❋❋
زموږ سرونه،
زموږ وینې
دشنو چرسو او د بنګو هغه شنې دانې دي
چې دودوي یې ((باباقو)) ملنګ
دغم او د سترېیا شېبه کې.

۲۵/۳/۱۳۷۱
کابل

## جنازې

وربځو د ستورو جنازې ښخې کړې
بیا پر دې غرو
د رڼو ستورو د نارنجو ګلان نه وریږي
رانه د سترو مساپرو پېښو پل ورک شو.

❋ ❋ ❋

هره شپه مې ځوانې مړې تندورنه وژني
هره شپه د ځوانو مړو جنازې ښخوم
خدای زده
دې لار کې چېرته روغه څېړۍ شته او که نه؟
چې راته غېږ پرانیزي
څادر مې باد وړی دی !.

۲۲/۴/۱۳۷۱
کابل

## کلی - د پره

ماته د کلي مازیګر یو ځلې بیا وخندل
د مرورو وږمو پېغلو مې د شونډو جل وهلې پانې بیا ښکل کړې
کلی مې بیا لکه د وینې د زړګي پر فصل وبهېده.

❋ ❋ ❋

د پلار هوجره لکه کنډ کپر پرته ده
نور ترې د سترو بزګرانو د چلم دودونه نه راخېږي
نور یې انګړکې د ښاغلو مسافرو د څپلیو د ګل مېخونښې هم نه شته
له ماتې ملا یې نړېدلي د سنځلو نازولې څنې
او پلار یوازې د کابل په هدیرو کې مسافر پروت دی.

❋ ❋ ❋

بیا مې د کلي د اذان اواز له خوبه ویښ کړم
اذان پر کلي باندې خور دی خو په غږ کې یې هماسې
د سپین ږیري ((بلال)) سوز نه شته (۱)
ټول د پکول شاته لمونځونه کوو
او د جومات محراب له مانه د ((بلال)) سپینه پګړۍ غواړي.

❋❋❋

کلی هماسې له دبرو ډک دی
دکلي لارې د زلميو تردرنو درنو ګامونولاندې ساه اخلي
خو ګودرونه رنګ دي
د کلي پېغلې انګېرونوکې د نيا زړې څرخې تاووي
او زه لګيا يمه دپلار زړه دبره چلوم.

۱۸/۲/۱۳۷۱

۱- د شاعر منظور مشر تره مشهور ديني عالم مولوي عبدالحی دی.

# ګلونه

کرلـي مـې جانـان دي پـه اورونـو کې ګلونـه
زه هسـې لټومـه پـه ګلونـو کې ګلونـه
زاهـده رانـه کېږي چې ماښـام کې قضـاګانې
لیـدلي مـې د زلفـو ماښـامونو کې ګلونـه
ورېـمې وې نابلـدې د کمڅیـو لـه غرونـو راغلـې
زرغـون مـې شـول د کلـي پـه خوړونـو کې ګلونـه
هر ګوټ سره ګلاب شي تکې سرې د پیالو مورګې
جامونـه پـه ګلونـو کـې، جـامونو کې ګلونـه
پـه شـونډو کې موسکا خـو یـوه وکـوه جانانـه !
سپرلی شـه غـوړوه مـې پـه زخمونـو کې ګلونـه.

۲۵/۷/۱۳۷۱
کابل

## د ((آدم)) وصیت

زه ((آدم)) يم، زه ((آدم)) يم
له جنته شړل شوی
پر دې ځمکې بادشاه شوی
ورور دې ورور پرکانې وويشت
نازولی زوی مې مړ شو.

❋❋❋

زویه ! زرکاله پوره شول
یو څو ورځې دې مېلمه یم
څو خبرې درته کړمه
نن به یم سبا به ځمه.

❋❋❋

دغه سپین مزی در واخله
د پستو پستو وربښمو
پکی حک مخ د نبیانو
د جمله وو بادشاهانو
پربښتو وو دی اودلی
له جنته دی راغلی.

❋❋❋

خو وبښته زما د ږیرې
او همدا جنتي مزی
په یوه تابوت خوندي کړه
ورته جوړ قفل او کلي کړه

ځو چې ته او دنیا ده
پر دښمن غلبه ستا ده.

❋ ❋ ❋

دا ګوتمۍ مې هم دروا خله
ورته وبه ښیې لارې
دا ((میمون)) اس مې هم ستا دی
ورسره بریښنده توره
هر بری د ستا بری دی
هر زورګیر دستا مریی دی.

❋ ❋ ❋

زما ننبې دستا ننبې
زما لکړه ستا لکړه
زما لاره د ستا لاره
زما چاره دستا چاره
خو وروستۍ خبره واوره
وینه توی زما د زوی کړه
دمظلوم زوی په بدل کې
زویه ځه ته هم قاتل شه!
د ((آدم)) د غاړې ګل شه!

۲/۹/۱۳۷۱
کابل

## دا احمق په لټون

اوربېدلي مې کيسه ده خداى زده کله
له ملانه، له عامي نه که له بله
يو سپين ږيرى چې يې وخت د ځنکدن و
په هوښيارو کې هوښيار او عزتمن و
خپل زامن يې کړل پر ځان باندې چاپېره
وې خبره درته کړم چې نه شي هېره
څه يې چې شته نيم يې په ما پسې خيرات کړئ
څه وېش، څه يې پخه او څه يې سقات کړئ
نيم يې ورکړئ د کوم ځاى نامي دله ته
کوم احمق، نادان، رذيل، حرامزاده ته
چې په نوم د حماقت تر څوک بر نه وي
دغه نيمه برخه ټوله دې دده وي
سړى مړ شو دخيرات کټوې بار شوې
ګېډې ډکې شوې د دار او د نادار شوې
زامن ټول شول مصلحت يې سره وکړ
د احمق سړي لټون ته يې زړه ښه کړ
وې فرض کړى موبابا پر موږ دا کار دى
پسې ګرځو په دې ښار که په بل ښار دى
ګوندې وي چې په دې کار کې کوم حکمت وي
د سپينږيرو خو په نيکو مصلحت وي

زامن لاړل نيمه برخه يې تر ملا کړه
په شپو شپو يې خپل زاړه کلي ته شاکړه
د احمقو يې ښار له هره لاره
پسې تلل له يوه ښاره تر بل ښاره
لټوه هغوی احمق چې ښه شاخدار وي
احمقان خو ګڼې هر چېرته بسيار وي
خو شاخدار احمق هېچېرې پيدا نه شو
څو چې سر يې د پايتخت پر کوڅو وشو
دوی له ورځو يوه ورځ ليدل په ښار کې
چې راجوړې دي مېلې په هر بازار کې
هرې خوا نه راټول شوي ښه ځوانان دي
څوک يې پېغلې، څوک زاړه، څوک هلکان دي
دچا شونډو کې موسکاوې دي غوړېږي
څوک تندی پر زنګنو وهي ژړېږي
يو خوا ساز دی، پايکوبي ده او خندا ده
بله خوا چغې دي نارې دي او ژړا ده
چا کړه شمله پر سر ايښې خوښې کړي
چاله برېتو نه تار ايستی زبونې کړي
ورونه ګرځي په مېلو کې هورې دورې
دوی ليدل هغه کانې چې نه وې چېرې

دوی ليدل چې د مېلې په هغې خوا کې

تخت ځلېږي د رنګونو په رڼا کې
په کې ناست يو عزتمن سړی دی ګوره
چې وربېږي پرې ګلان له هره لوره
طلايي تاج يې پر سره لکه دلمر دی
تيارسی ورته سردار دی که لښکر دی
جوړ تولګی ورته ولاړ دی د ساقيانو
ښکلې پېغلې او په کې دي د زلفانو
دمېلې پرې بله خوا بله کيسه ده
دوی ليدل چې هلته بله هنګامه ده
دوی ليدلو يو سړی چې عزتمند دی
له يوې پښې له ونې نه ځوړند دی
څوک يې سر وهي په سر څوک په سوکانو
نه زړه سوی د جنکو نه د ځوانانو
له ماشوم نه هم خيرات د خپل سر غواړي
خو وهي په کې هر څوک د لاس سوباړي
د سپين ږيري زامن ډېر ورته حيران شول
بيا په لټه د دليل او د برهان شول
له يو چا ځنې يې وکړل تپوسونه
چې راښيه د خدای پار دی دليلونه

د يوه مو ولې دومره هرکلی کړ؟
او له بل ځنې مو جوړ د کوڅې سپی کړ؟

وی هغه چې اوس د تخت پر سر مستي کړي
پس له دې نه به پرمورېه پاچاهي کړي
او دا بل چې تالیده سر په ژړا و
یو ساعت مخکې زمورږ پر سر پاچا و
مورږ دنوي هرکلی کړو څه چې غواړي
بیا چې زور شو نو وهو په کې سوباړي
د بابا زامنو ووې چې مو ومونــد
ها احمق چې مو په ټول جهان کې نه مونډ
د شاهي په باغ کې ناست نه ګوري منې
ښه پوهېږي د سبا سوباړي وینې
نیمه برخه د بابا یې رابهر کړه
بیا یې ټوله د بادشاه په لاس کې ورکړه.

۷/۱۰/۱۳۷۱

کابل

## بادشاه او معشوقه

تېره هېره زمانه کې يو بادشاه و
نازولی په هر ملک ددې دنيا و
خدای ورکړې دبدبه دتاج اوتخت وه
په هر ځای ورته ګونډه اوښه دبخت وه
خزانې يې وې د شتو وتې له شماره
هر خزان يې ښايسته و له بهاره
نه کمی و د لښکرو نه د زرو
نه کمبود په کې د مينځو او نوکرو
شمار يې نه و په حرم کې دبيبيانو
نه د ښکلو معشوقو نه د ساقيانو
هر محل يې د دنيا پر سر جنت و
رب ورکړی له ازله دا عزت و
د بادشاه په دلبرانو کې يوه وه
چې په ټولو کې ښايسته لکه ډيوه وه

لکــــه حــــوره هســــې ښــــکلې نــــازولې
تــــه بــــه وايــــې لــــه جنتــــه وه راغلــــې
چــا ليــدلی داســې حســن چېــرې نــه و
ډېــر شــاهان يــې پــه ليــدو پســې ړانــده وو
د بادشــاه ټولــه هســتي ددې هســتي وه
د شــپې ورځــې پــايکوبي وه بدمســتي وه
دغــه نــورې معشــوقې، نــورې بيبيــانې
ورتــه ټــولې د پښــو خــاورې وې خــوارانې
يــــو وېښــــته ددې او دا ټولــــه دنيــــا
بــــدلوه کلــــه دداســــې عشــــق بادشــــا
يــوه ورځ يــې پــه شــېبو د بدمســتۍ کــې
د خونــدونو او رنګونــو پــه ځــولۍ کــې
ســرې د نــاز شــونډې راپرانيســتې ادا تــه
څــو خبــرې وې چــې ويــې کــړې بادشــاه تــه
وې پلانــی حــاکم دې ډېــر درتــه خــاين دی
تــه پــوهېږې نــه خــو مــا تــه مبــين دی
❋❋❋

چې خپمه د مستۍ ټوله شوه سهار شو
د مظلوم حاکم تیارې خونې ته لار شو
پس له څو ورځو پوښتنو احوالونو
پس له ډېرو تحقیقونو، تپوسونو
شوه معلومه چې تقصیر د حاکم نه دی
تش تومت د معشوقې د ترخه زړه دی
پس له هغې بادشاه ډېر ورنه خفه شو
سلطان لاړو درباریانو ته جرګه شو
وې که څه هم ډېر پر دې ښکلې مین یم
خو والله چې پر هغې پېښې غمجن یم
زه وېرېږمه که بیا هم داسې وشي
خدای خبر چې ددې ملک چارې به څه شي
درباریانو ورته وویل سلطانه
نوریې مه منه خبره عالیشانه
بادشاه ووې ناممکنه ده ملګرو
چې ځان منع کړم د هغې له خبرو
❋❋❋
یوه شپه بادشاه دربار نه رابهر شو
معشوقې سره ملګری په چکر شو
پر بېړۍ سواره روان وو په دریاب کې
معشوقه یې کړه ګوزاره په تالاب کې
معشوقه لاړه خو اور یې د عشق بل کړ

لګېدلی د بادشاه پر تش ګوګل کړ
بیا بادشاه شېبې پر اوښکو لندولې
اوښکې څه چې یې سرې وینې بهولې
بادشاه هسې خوار وزار او تورکمند شو
چې ګوزار د عشق او مینې له سمند شو
درباریانو ورته ووې ای امیره !
ای زمونږ د سرو سیوریه ای زهیره !
اوس چې مرې ورپسې ولې دې غرقاب کړه
خپله مینه دې لاهو په دې دریاب کړه
بادشاه ووې ورته ای عالیجنابه
زه خراب به یم نه ملک خانه خرابه.

۲۹/۱۰/۱۳۷۱
کابل

## پر قبر مې

ما مې دا خپل قبر په سترګو ولید
قبر،
زما د سفر نوې ببړۍ
د وچې ځمکې سمندرکې غړوې د مساپرو مساپرې شپېلۍ
او قبر کښونکي
سترې سترې رانه پښو ځنې ښپلۍ وباسي.

❋ ❋ ❋

بربنډې پښې، سپينې جامې پر غاړه
زه مې د خپلې جنازې پر سر ولاړ يم
د ملا غږ ته مې غوږ نيولی
چې بلوي مې پر ګناه د ثوابونو څراغ
زه ورته سرې سترګې ژړېږم
وايم دروا غ دي
ملا مه يې وايه!

❋ ❋ ❋

له کور او کلي نه مې ساندې خېږې
ادې د زوی چيغې وهي
بچيان دادا ببرته له خدايه غواړي
د چاپه خوله کې چېرته نه شته چې شاعر مړ دی
او دلته زما په جنازه کې
يو شاعر
خپلې مېرمنې سره ناځي او سندرې بولي.
**۵/۱۱/۱۳۷۱**
**کابل**

# بزګر

څنګه سرې ږلۍ په سر واخیستم؟
زما دلاس د خولو فصل نه یو شین بوټی راپاټې نه دی
چېرته یو ژېړ وږی هم نه شته چې یې پاس پر پټکي کېږدم
له ګودر څنې په بېرېتو کې موسکی تېرشم
په مخه لاړ شم، شاته وګورم
پر ښکلي اشنا بیا د یوې بلې وعدې زېری وکړم
ږلیو څه و نه کړل؟
بزګر لګیا دی تر خپلې
لور سره خبرې کوي
بزګر ژړېږي
او وریو ورته غوږ نیولی.

۲/۱/۱۳۷۲
لغمان

# بنګړیواله

بنګړیواله توړۍ بیا پر کلي راغله
بنګړیواله شرنګ پر ولو ،
د ښایسته رنګونو څانګه
بنګړیواله زموږ د کلي
د زلمیو د ((طالعو )) د نازکې غوټۍ وږم
بنګړیواله زموږ د کلي
د پېغلوټو د اختر د شپېو زېرى
❋ ❋ ❋
بنګړیواله توړۍ راغله
ړنګه بنګه ساه نیولې
په پستو پستو ژګېروو یې
د هر کاڼي تپوس وکړ
خو زموږ د کلي لارو
د پردیسې بنګړیوالې
تش د خولې سلام وانه خیست
وې یې: هو ! رښتیا زړه شوم

دغو سترګو رب وهلو
خدايزده چېرته
بيا پرکومو نابلدو کوڅو سر کړم؟
❋❋❋
بنګړيواله توړۍ تم شوه
حک حيرانه پښېمانه
بنګړيوالې په لستوڼي
دښو دوړې جارو کړې
هر دېوال يې ددې کلي
له خوا ږه نظره تېر کړ
وې يې: نه، کلی همدا دی
دا کوڅې هغه کوڅې دي
خو حيرانه يم چې څنګه
نن مې پل په کې پردی شو؟
❋❋❋
بنګړيواله رنګېدله، بوګنېدله
چې له لرې زموږ دکلي
پخوانۍ ښارو ښکاره شوه
يو اشنا سلام يې وکړ
اودانه يې دانګورو
د بوډۍ په خوله کې ورکړه

وې يې: ځه نو بنګړېوالې
ځه ورځه پر مخ دې ښه شه
اوس نو هغه کلی نه دی
او د ښکلو مړوندونه
ډېر کلونه شول چې پرې دي.

۱۱/۱/۱۳۷۲

## غـچ

...خویو تریخ د زهرو جام دی
نه څه سره لري نه سپینه
نه يې رنګ شته
نه يې خوند شته
نه يې پاتې شته نه مړینه.

❋ ❋ ❋

عجیبه ډالۍ يې راوړه
پرښتو ، د جنت حورو
شپېلوي راته هډوکي
قتلوي سر توره مینه
سین د زوو دی ترې څاڅي
وریتوي د زړونو وینې

❋ ❋ ❋

اوس پوهېږئ؟ څه يې وکړل؟
ها لوبګرو د باغونو؟
یوه وښوده په ګوته
بل يې دل کړه پر غاښونو.

❋ ❋ ❋

اوس يې غچ له موږه اخلي

رېدي مو ژرندې پر سرونو
ورشه غوڅه دې کړه ونه
راشه وادې خله غنمینه
نه یې رنګ شته
نه یې خوند شته
نه یې پاتې شته نه مړینه
قتلوي سرتوره مینه
وریتوي د زړونو مینه
...خویو تریخ د زهرو جام دی
نه څه سره لري نه سپینه ( ! )

۱۲/۲/۱۳۷۲
لغمان

## ښاپېرۍ

دغره په لوړه څوکه ګورئ
چې د ستورو د هیلیو تر ښکو لاندې
زما دمینې ښاپېرۍ ناسته ده
چیغې وهي
تندې اخیستې پرې باران نه وورې
په تور وربل یې
د چندڼو پاڼو اور واخیست
غزل وسوځېد.

✵✵✵

څومره درنه او پښتنه ده اوښکه
اوښکه دزړه له نازولې کوره راغله
زما په لپو کې راپرېوته

او زه لګيا يم لوړې څوکې ته
په لپو کې او به خېژوم
څوکې ته ورسم نږدې شم
بيا د ځمکې تل ته ولوېږم
او به او به شم
ښاپېرۍ تنده وژني
او زه اوبو وړی يم !.

۱۲/۲/۱۳۷۲

# سیلاني بلبلې

سیلاني بلبلې لاړې
نور د باغ د خوب په سین کې
د بلبلو سرود نه شته
د شنو چیغو تصویر تت دی
نور د باغ د سرو ګلونو
د بلبلو د سرو شونډو
نازولې مینه مړه ده
نور د پاڼو پر کمڅیو
سهارونه د سپرلیو
چېرته پرخې پرخې نه شول
((سر له سره پالنګه هسک کړه فتح خانه
لویه خدایه، سیلانې بلبلې والوتې له باغه.))
سیلاني بلبلې لاړې
نور پر اس د تنګیالیو
د پګړیو د شملو
د لوړو لوړو
اسماني غرو پته نه شته
نور د برېتو پر سرونو

هغه تاوه
د پښتون
اسرافيلي شپېلۍ کښه ده
نور هغه ډګر مات شوی
او پرغاړه د پردیو
هغه مستې
سپينې تورې لښتې نه شوې
((رابيا )) بله ناره وکړه:
((سره له سره پالنګه هسک کړه فتح خانه
رابيا ګلې پونده ورته کړه سپره شوه )).

۳۱/۳/۱۳۷۳
کابل

## روږده

زړه شړلی یم له کوره اور مې بل دی په کاله کې
لږ مې پرد پرږده چې ویده شم ستا د زلفو په ځنګله کې
سترګې ستا سترګو کې لامبي ملامت را باندې مه کړه
تنده کله ماته شوې د کبانو په ویاله کې؟
ما د مات زړه له هر شرنګه د شنو چیغو مالت جوړ کړ
نه دي نوم وځي له زړه نه، نه مې شپه کوي په خوله کې
د سینې پر باغ دې تلم ستا د سینې قراول تم کړم
اوس نو پرې چې مې زندۍ کړي ستا دغاړې امېله کې
چې په پټه دې خوله راکړه تا په خپلو لاسو غل کړم
نن سترۍ وې سبا درمند روږده دا سې کوي غله کې

۳/۴/۱۳۷۲
کابل

## تنده

د فردوس د عیش کوربه دی
غرقوي دنیا د ترکو
خو لا تشې مړې غواړي
د سوالګر سارۀ نغري نه.

❋❋❋

د سوما جامونه لاس کې
زموږ دوینو لامبوزن شول
نه سرېږي، نه ماتېږي
د مړو شومانو تنده.

۲۱/۴/۱۳۷۲
کابل

زما د دوه ویشت کلن ځوان وراره شفیق الله متین شهادت

## ویرنه

خلکو ګورئ چې پر کور مې د غم اور لکه غر پرېوت
د فلک خونړی لاس مې لکه تبر پر سر پرېوت
هر یو کاڼی مو قاتل شو راته بېل بېل پر در پرېوت
د سرو وینو په کاله کې بیا د وینو ګودر پرېوت
څه درانه چنار ته ناست هم د مرګي پر خنجر پرېوت
یو روڼ لمر مې د کاله و، سهر وخوت سهر پرېوت
مرګه څومره ګناهکار یې ورانوې د عزت کلي
له بې پتو ځنې تښتې ړنګوې د عفت کلي
❋❋❋
خدایه څنګه به شم صبر څنګه اور مې کړم په زړه کې
زېړېدلی یم لویېږم دا دویر په زنګانه کې
چېرته اور چېرته توپان وي راته سم ووري کاله کې
غم زما د کور کوربه دی، مرګ مې ناست په دالانه کې
نه په غېږ کې د نیا لوی شوم نه په غېږه د نیکه کې
پرون پرې د پلار مری شوه نن ساه قتله په وراره کې
څه د غم په ورځ پیدا یم څه د غم په ورځ به مرمه

لویــه خدایــه لویــه خدایــه ! دا څــه یمــه دا څــه یمــه.

❋❋❋

ټول کهول مې جارجارو وای خو ((شفیق ))راته په کور وای
دا زلمی ستوری د کور مې د نیکه پر درګاه خور وای
تـل د قـام د پګـړۍ ګـل وای د ټبـر د پـت انځـور وای
غـم یې تـل زما پرسر وای دا دژوند پـر نیلـي سور وای
دده درد وای زما مرګ وای دده کور وای زما ګور وای
زماخونــه وای خرابــه خــو ودان نغــری د ورور وای
تولعنـت زما پـه غـم شـه زه یـې زوړ کـړم دی زوړ نـه شـو
کال په کال رانه کښت ربیي خو وړ سترګی دی موړ نه شو

❋❋❋

لا یې سیوري ته ناست نه وم ځوانیمرګ شو بهار وسو
سم چې ګل جوړ شو شلمې تـه، شمله وسوه ګلزار وسو
چې راخوت د سهار ستوری، ستوری وسو سهار وسو
هغه ړنګه ځواني وسوه هغه دنګ دنګ سپېدار وسو
ځاربـدې چـې ورنـه ښـکلې هـا دښـکلیو سـردار وسـو
ګلالـی لالـی مـې وسـو، وطـن وسـوځېد ښـار وسـو
پر هر سرباندې اوربل دی سر دې پورته کړه ((شفیقه ))
پـر مزار بانـدې دې سوځي لـه (یمینـه ))تـر ((عقیقـه )).

❋❋❋

وروره تـه خو د ګور نه وې ستاځواني دګل ځواني وه
ستاښایست د ګل ښایست و، ستاثاني دګل ثـاني وه
ســتا د خــولې د تکبیرچیغــه ددې کلــي ودانــي وه

تــه د ســرو يــا قوتو كــان وې خــو وطــن كــې ارزانــي وه
ورور د ورور پــه لاســو وژنـــي دلتــه دا مســـلماني وه
دلتـــه دا ســـې نـــاداني وه، دلتـــه دا ســـې نـــاداني وه
مګرتــه يــوازې نــه يــې دلتــه د نــګ غرونــه قتلېــږي
دلتــه ســيند پرچــړو وژنــي دلتــه ټــول وطــن نړېــږي.

۲۲/۴/۱۳۷۲
کابل

# داسې لور داسې لوونه

وربځې بیا لامبي پر اور ووري پر ګلو
دا زلمی سپرلی څو نه دی د سوځلو
له اسمانه د سکروټو غر را پرېوت
سوځوي مې ښکلی کلی د سنځلو
بیا د ګلو د حیا پرناموس جنګ دی
ځانګې سترې شوې د ځان پر قتلولو
د باغ سپین مړوند رېبلی دی اغزیو
پرې یې نه ښود چېرته جوړ ګړېوان د ګلو
د سیندونو مست اوښان وسول له تندې
د هیلیو پېغلې بیا لاړې له کلو
د سپوږمۍ پر وربل مري غونچې دستورو
لمرد ځان جنازه وړي پر خپلو ولو
موج دوینو ګلان و کول سپرلی شو
څه حاجت شته؟ د ګلاب او د سنبلو
بیا لنده نه شوه ډوډۍ د ((عیسی)) جام کې

پاتي نه شول هغه سره شراب د څښلو
د پيالو پر شرنګار يو ويده ويښ نه شو
نه ساقي شته نه کنډول د کړنګولو
يوې شمعې د شپو د بو پرتندي ونه ويشت
يو پتنګ نه شته لمبو کې دلامبلو
دا ويدې سترګې د بڼ پرې رڼې نه شوې
چيغې پرېوتې رانجو کې دبلبلو
فلک اور پسې اخيستی سترى نه شو
د دې مستو چتو ستورو په ربلو
نازولې غوټۍ نه شوې په کې بلې
تور لوګي دي چې ټيکري شول د وربلو
د ماتم ډمو بنګړي د ښکلو مات کړل
غوږ شوي ورنه نکريزې له منګولو
په پرهر زړه مې لاس مه وهه جانانه
دا خوسا لوپټه نه ده د ګنډلو
زرغون شوی چم په چم برسات د اوښکو
قتل شوي موسمونه د خندلو
دا چمن چمن وطن دار ته بس نه شو
نه يو شين ډډ د چنار شته نه د ولو

مني بيا ورته له سره سيخان سره کړل
دا لاله دي له ازله د داغلو

ددې خوارو پر قسمت به باران نه وي
چې لمبې ووري په كور د جل وهلو
يو پرې شوى رګ مو ښخ لکه تاک نه شو
يو سر نه شته په دې ښار کې د ښندلو
نه د عقل پر اس سور نه ليوني شته
نه شته ژبه د زنځير نه دويلو
څه ايرې د بې قدرۍ ورباندې شنې شوې
دا درنې شناختې خو نه دي دكتلو
ددې كلي ښاريان مړه له سره وژني
غشي ولي بيا پر زړونو د بسملو
نه يو مټ د تيارو جنګ ته چېرته پاتې
نه يولاس د خپل ګرېوان د څېرولو
د لمبو ترخېمو يو ((ابراهيم)) نه شته
پيدا نه شو يو ((منصور)) د دارختلو
بيالوبدلی دی((رستم)) د((شغاد)) څاه
کـــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــــې
لاره نه شته دې ګړنګ نه دوتلو
نه يې ګرد په تورو دښتو کې د اس شته
نه ناري د شهسوارو د دانګلو

بيا يو شين زمرى دې غرونو کې لوى نه شو
يوه تشه جنډه نه شته پر مورچلو

د شنو چیغو له کاروان سره سفر دی
ژبه نښتې په تالو کې د غزلو
سر له تور و خاورو پورته کړه
((خوشاله)) !
لا خو غچ د ((هجري)) پاتې پر
((مغلو)).

۹/۵/۱۳۷۲
کابل

## نه جام، نه څادر

څو تور سرې
څو سپین سرې
((یو څو اوښې))
((څو پسونه))
څه غریب سترې کاروان دی؟
باد راورې پاڼې رېږدي.
❋❋❋
((قاف)) لمبو پرسر اخیستی
ښاپېرۍ شوې مساپرې
خدای خبر دی چې به دمه
بیا پرکومو غرونو کېږدي؟
❋❋❋
څنګه رنګې میکدې دي
څنګه ښکلې شونډې سوځي
جانه بیا به دې ساقي شم
((که مې غم د ډوډۍ پرېږدي)).
❋❋❋
نه ترانګې د کېږدۍ شته

نه څپلۍ، نه څادرونه
لوټوي د جام ناموس مې
پر شهیدې پګړۍ پښې ږدي.
❋❋❋
څو تور سرې
څو سپین سرې
((یو څو اوښې))
((څو پسونه))
څه غریب ستړی کاروان دی؟
باد راوړې پاڼې ربړدي.

۹/۷/۱۳۷۲
کابل

## سیوری (۲)

ماخوټول عمر له کوچیو سره مینه کړې
کوچي لوګي،
کوچي بادونه،
کوچۍ پېغلې
او کوچۍ کېږدۍ
ماخو ټول عمر له کوچیو سره مینه کړې
❋❋❋
- کله چې باد
زما د کور پر رژېدلو او خټینو بامو
د خپل ناپایه منزلونو سفرونه وهي
زه ترې مدام
د خپل ورک شوي سیوري
د ټوخي غږ اورم.
- کله چې
ما د شوګیرو د تورو غرونو ترشا
د خوب کوچۍ
زما د سترګو په رڼې کېږدۍ راپېښنه وکړي
زه د کوچیو د کاروان
د هغه مست

خو ددې سترې اوښ
د غاړې له زنګونو ځنې
د خپل ورک شوي سیوري
سترې غزل اورم.
- کله چې
د کوچۍ پېغلې د رنګین وربل ماښام
او د کمځیو د غځېدلو غرونو شپو ته ګورم
زه ترې مدام
د خپل ورک شوي سیوري
د پرهرجنو وینو
د شنو غوټیو شین سلام اورم.
- کله چې
تر سترېو سترېو منزلونو وروسته
د هغو دنګو غرو تر غاړو
د وړو وړو وریو
د خندا تمځایونه ګورم
زه مې خپل سیوری وینم
چې ورته لپو کې اوبه ورکوي
او له شنو سترګو یې سترېاوې مینځي
ما خوټول عمر له کوچیو سره مینه کړې.
❋❋❋
ای د بې ننګو

اوبې کوره شنو بادونو په ځېر
زموږ د کوچیو
لالهاند کاروانه !
- ای ددې دنګو دنګو غرونو
او د لویو دښتو
په سپینو سپینو او سپېڅلو پیو
را لویه شوې کوچۍ !
- ای ددې غرونو د ځېړیو
او چندړو دباغونو
پر لندو لښتو ویده کوچیه !
ـ او ای د غرونو د شپونکیو
د شپېلیو په وزرونو کې
راتاوې کېږدۍ !
سیوری مې بېرته راکړئ !
زه مې یوازې د غم غر
او د خنداوو جنازې
پر خپلو سترو
او بې کسو اوږو نه شم وړلای
سیوری مې بېرته راکړئ !
زه پر دې ارتې او پراخې نړۍ
ایکې یوازې
همدا سیوری لرم

سيوري مې ښېرته راکړئ !

❋ ❋ ❋

ما خو ټول عمر له کوچيو سره مينه کړې

کوچي لوڼي،

کوچي بادونه،

کوچۍ پېغلې

او کوچۍ کېږدۍ

ما خو ټول عمر له کوچيو سره مينه کړې.

۲۲/۸/۱۳۸۲

لغمان

مېرمنې ته لیک:

# کورمې

شپې شي، شپې ومري
او د ورځو اوښې بیا وزېږي، بیا قتلې شي
خو زه ژوندی یمه د شپو، ورځو د قتل انتظار ته ناست یم
ویې څښم، ویې خورم،
ګړی، ګړی ویده پاتې شم، بیا پاڅېږم
پورته شم، بیا یې وڅښم، بیا یې وخورم، بیا ویده شم
شپې شي،
شپې ومري،
او د ورځو اوښې بیا وزېږي
بیا قتلې شي.

***

زما د ځانګې یخ وهلي ګلان لاړل
چې د ښکلي مشرق زلفو نه
په څهو کې د لمر ښکلي ګلونه کېږدي
او زه یوازې د پنجرې په څنګ کې ناست یم
له خپل ځانه سره ((ګاټې)) کوم
کله نانځکو ته لمنې اوبم

کله انګړ کې له خپل سیوري سره پاڅم په ((موسییو ) ) سر شم
خو د ((موسییو ) ) چم مې هم نه دی زده
کله د خدای له وېرې پاڅم
ستا لمن مخې ته واچوم پرې لمونځ وکوم
سترې ستومان شم پر لمونځونو
خو لمانځه نه وروسته
خولې ته دعا نه راځي
خدای ته دعا هم پښتنې ژبې ته سوال ښکاري
او زه د سوال او د سوالګر له نامه کرکه لرم.
شپې شي،
شپې ومري،
او د ورځو اوښې بیا وزېږي
بیا قتلې شي.
❋❋❋
زما د کور ښاپېرۍ تللې د مالت د کوه قاف په سفر
نور مې د کور له دېوالونو نه
د عطرو ګلان نه ورېږي
هره شېبه
د سرو ګلونو د غوټیو د عطرونو پر ځای
د ورور د چرسو او د شنو بنګو دودونه څښمه
څوک د ډوډۍ پر سر لګیا دی
نامینځلی لاس ګولۍ تاووي

بل د یو بل د خولې مړی شماري
بل پخلنځی د شنو نسوارو په شنو لاړو ډک کړ
نور د دې کور د عادتونو په ښیښنه کې خپل مخ نه شم لیدی
ښاپېری ببرته راشه !
ګلونو راشئ !
زما تشه څانګه بیا ډکه کړئ !

۳/۱۰/۱۳۸۲
کابل

# غزل (۱)

منم چې وطن وران شو مګر وران نه شو دا غر
اسمان یې په سر کېوت خو ستومان نه شو دا غر
حاجت څه د بېړۍ شته دا مې کلی دا مې کور
خبر دې چېرته نوحه په توپان نه شو دا غر
هر کانی یې رهبر دی هره پرخه یې قیام
بې توري بې شملې نه شو حیران نه شو دا غر
وربرېږي دې اورونه پرې دا غاړه دا یې سر
سوزېږي خوله هوډه پښېمان نه شو دا غر
قربان یې شم له ضده چې یې هېڅ نه کړو بدل
هماسې چې افغان و بل افغان نه شو دا غر.

۳/۱۲/۱۳۸۲
لغمان

## رحمان

وچې خاورې نه بهر شو
هومره لوی شو لکه غر
هغه ړوند سترګې پیدا کړې
هغه ګونګ شو ژبور
په بې پوندو پښو ګرځي
دا سپوږمۍ ده که دا لمر
لویه ځمکه یې پیدا کړه
هسک په تله برابر
دا شنې ونې دي که څانګې
ورته ټولو ایښې سر
هر څه پرمخې پراته دي یادوي نوم د رحمان
تاته چا وې چې دروغ دي نعمتونه د سبحان؟

***

ځوک يې جوړ کړ له کودړي
ځوک يې پاځوه له اوره
څه خوږې، تروې اوبه دي
ځي بهېږي لور تر لوره
تکه شنه هره دانه ده
هره ونه يې سمسوره
لکه غرونه بېړۍ ګانې
په دا شنه درياب کې ګوره
ځوک پيدا کړي ځوک فنا کړي
ځوک تر کوره ځوک تر ګوره
يا خو وباسي له سينده مرغلرې او مرجان
تاته چا وې چې درواغ دي نعمتونه د سبحان؟

***

وخت د تلې رانږدې دی
نه بقا شته نه مهلت شته
که پېرې دی که انسان دی
نه يې زور نه يې همت شته
بې لوګيو سرې لمبې دي
نه ارام شته نه راحت شته
دا اسمان به چوي له وېرې
داسې غم داسې هيبت شته

له اسمان او ځمکې وو ځه
که دې توان که دې طاقت شته
چې کرل دې اوس یې ربېبه دا ده ورځ د امتحان
تاته چاوې چې دروا غ دي نعمتونه د سبحان؟*

* دا شعر له سوره رحمان څخه په الهام ویل شوی دی.

۱۴/۱۲/۱۳۸۲
لغمان

# سیند

پېړۍ يې تېرې شوې هوښيار نه شو
چا وې د کلي سيند مهار نه شو؟
زه به رسوا کړم بې ننګي د څپو
که جاله وان راته په قار نه شو.

۲/۱/۱۳۷۳
کابل- ماهيپر

# کرونده

ځمکه هېڅکله د سینې د سر شین شوی نازولی زړی نه هېروي
زړی هم مور غواړي.

❋❋❋

باد ددې غره له تالا شوي کلي راغی
زموږ د ښکلې کروندې په سپینو تیو کې یې پې وچې کړې
زړي له لوږې مړه شول
او زه تنها پاتې شوم
د کروندې پر وچو تیو د ماشومو شهیدانو سرې جنډې شنې شوې
کرونده بوره شوله
کرونده زړه پر شا پرته ده
د اسمان د مور پر سپینو نازولو بچو ناړې شیندي
کرونده باد نه دا د ځیرې لمن پور غواړي.

❋❋❋

کرونده ژاړي راته چیغې وهي:
زویه ! فقیره او ناکامه شومه
سبا به سره اورونه مړه وي
او د کلي دغه سوړ تنور به ژاړي
او له لوږې به مري
لاړ شه ! د بلې کروندې د سینې زړی شه او وغوړېږه
زه به دې هله مور شم

چې ها بزګره او نهره پېغله راشي راته وخاندي
او ووايي چې اى مورې !
دادى نن بيا مړه شوم
وچه ډوډى مې بيا له لاړو سره تېره کړله.
❋❋❋
تنور لګيا دى رانه اور غواړي.

۱۵/۲/۱۳۷۳
کابل

# کچل

یو سړی نوم یې حسن د کونډې زوی و
د کچل په نوم مشهور پر کلي، کوی و
پیدا کړی رب تنبل او هم بېکار و
همېشه به دی د مور پر اوږو بار و
یوه ورځ یې ابې، ویوسته له کوره
څه په چل، څه په تدبیر او څه په زوره
کچل لاړه له خپل ښار ځنې بهر شو
تر هغو چې پر یوې دښتې برابر شو
خوار او ستړی یوې ونې ته دمه شو
چې له لرې یو ټولی ورته ښکاره شو
یو هجوم و چې پرې راغی د مچانو
سره جګړه وه چې پرې جوړه شوه یارانو
کچل دم ساعت پر ټولو بریالی شو
له غروره هسې مست لکه زمری شو
بیا یې ولیکل پر غټو تورو باندې
چې ویده و د هغې ونې د لاندې:
((شل مې مړه، سل مې زخمي، سل مې ازاد کړل
دښمنان مې په یوه ګوزار برباد کړل))
په دې وخت کې یو لښکر چې د سلطان و
پر همدې لاره په کوم مقصد روان و

دوی لیدل چې یو سړی دلته ویده دی
او ترپاسه یې یو لیک په رپېده دی
لیک یې ولوسته لښکر ورته حیران دی
وې یې دادی چې رښتینی قهرمان دی
لښکر وخوځېد په منډو خپل سلطان ته
وې یې راشه شاها ! ګوره پهلوان ته
سل ازاد ، سل یې زخمي ، سل یې وژلي
اتلان نه شته تر ده چې موږ لیدلي
ددې شاه چې له بل شاه سره جګړه وه
د بري او ماتې وېره ور سره وه
په لیدو ددغه ځوان هومره خوشال شو
ته به وا چې د بري یې شین نهال شو
حسن راغی د دربار د غاړې ګل شو
د عیشونو تود باران وربانديې تل شو
بله ورځ هغه د جنګ چغه خپره شوه
اول تولو نه حسن باندې ناره شوه
د جګړې کالي یې واغوستل کچل ته
او س یې بیایې د مېړانې تود مورچل ته
وې یې زین کړه هغه اس چې دې خوښېږي
مېړني پر مېړنو اسو سپرېږي

خو کچل چې لا د خره سپرلي یې نه زده
د جګړو پر مېړنو اسو یې څه زده؟
کچل هغه اس راخلاص کړ له رسۍ نه
چې بېزار وله ازله زنده ګۍ نه
هغه اس چې نه مردار و، نه ژوندی و
پرې سپور شوی د سلطان دا مېړنی و
ټولو ووې په رښتیا چې قهرمان دی
پر همدې اس د جګړې پر لور روان دی
کچل ووې اوس مې وتړئ په پړي
چې چارپېر مې شي تر اس د بدن غړي
د کچل خو دا کارونه و له ډاره
چې ګوزار یې نه کړي اس په سمه لاره
خو پادشاه وې چې دا کار دی د نرانو
نه وېرېږي په تش لاس له دښمنانو
کچل لاړه د جګړې په لور وان شو
سر لښکری ګډ د رزم په میدان شو
چې یې ولید د دښمن د لښکر سیوری
هلته جوړ شو له کچل ځنې کربوړی
دی روان و چې تر مخې یې شوه ونه
هغه ونه چې له بېخه وه چینجنه
بیا له وېرې یې ترې غېږه کړه چارپېره
ونه ووته له خاورو نه تر زېره

پر اس سپور، ونه په لاسو کې کچل
ښکاریده هغو دښمنو ته اجل
دښمنانو چې یې نوم و اوریدلی
خو پر سترګو یې هرګز نه و لیدلی
وې ترلی پر اس سپور پر مور روان دی
ونه باسي په لاسونو دا څه ځوان دی
موره نه یو پر رښتیا د ده د زور
داسې بریښي لکه تندر، لکه اور
دښمنانو د جګړې له لوري شاکړه
فتحه داسې رب پر برخه د پادشاه کړه
پادشاه وویلې کچل ته پهلوانه
مبارک شه لور مې در کړه درته ځوانه
بیا کچل سره له ناوې راغی کور ته
شهزادګۍ یې کړه نوکره خپلې مور ته
اوس مېړه د مېړنیو حسن خان دی
هم باتور دی، هم اتل دی، هم ښه ځوان دی.

۱۹/۲/۱۳۷۳
کابل

# یو رنګ- یو باد

زه د دردونو رسېدلی فصل
زه مې د ځوانو ارمانونو شهید
زه مې د پېغلو سهرونو قاتل
زه مې د سترېو منزلونو شهید.

❋❋❋

زه له خپل ځانه ستړی شوی سیوری
زه له خپل ځانه ستړی شوی شاعر
زه هغه هېر، هغه نیمګړی غزل
هغه له سترګو غورځېدلی شاعر.

❋❋❋

زه رالوېدلی د موسکا له غرونو
اور راکې مړ دی هسې سکور یمه زه
زړه کې هنداره د سبا قتله ده
لکه حباب هسې یو کور یمه زه.

❋❋❋

زه ددې تورو شپو کېږدۍ ته ناست یم
مانه د ورځو تاج محل هېر دی
زه د تیارو د ډمو رنګ وهلی

مانه د سرو شونډو غزل هېر دی.
❋❋❋
زه د ابلیس ناوې په ښکار وړی یم
زه د بدرنګې ګناه اور کې سوځم
زما یې خوله د شپې پر تیو ایښې
زه د کمبختو ستورو کور کې سوځم.
❋❋❋
زه ددې وربځو سمندر کې لاهو
او ته ساحل راته د لمر ښیې
زه د لولیو شپو په غېږ کې ستړی
ته راته غېږه د سهر ښیې.
❋❋❋
ما د زړو بګوو چیغې وژني
رانه پېښې څه د بلبلو غوارې.
زه د بلا ژامو کې شپې تېروم
ته راته عزم د خندلو غوارې.
❋❋❋
زما یې چیغې په زنځیر تړلي
لکه فرهاد راته تېشې راکوې
زما یې شونډې په توبو ګنډلي
ته ګنا هکار راته نشې راکوې.
❋❋❋
ګوره زه مړ یم ته آیت د سبا

راځه راځه اشنا یه هېر مې که
رنګ مې وانخلې له دې سوي دردمند
باد یم راوړی په باد تېر مې که.

۲۸/۳/۱۳۷۳
کابل

## غزل(۲)

غر څومره ښکلی دی؟
د تیږو دارام سین
د موسکا
ویښو څپو کې ویده،
غر
ددې شګو په ټوکریو کې
د لمر د سرو انګورو
د باران هادې.

❋❋❋

غر څومره ښکلی دی !
د لارې د کاروان د تږیو اوښو
هر قدم کې
د شنو پرخو ګړی
غرمو د مینو د کیسو
سمسوره ژبه
او د ښکلو ښاپېریو
د کمڅو د سرو ګلونو
د باغچو مالې.
غر
د ښارونو

او کوڅو
او د بامونو
له تورتمو زندانونو نه د وتو
شنو یادونو
د سفر او ازادیو ذکر.
غر
د هوسیو او بازانو
ددې سترېيو سترېيو منډو
او خویونو
دغه ښکلی
زړه راکښونکی انځور.
غر څومره ښکلی دی اشنا
دا څومره ښکلی دی غر !

۲۷/۵/۱۳۷۳
لغمان

# غزل او خنجر

یو روڼ د سبا باد یم تکل شته خو وزر نه شته
دا څنګه پسرلی دی؟ سهر شته مازیګر نه شته
ای شپې ! ته دې له ستورو نه دا ورېږ پلو ډک کړه
زموږ د ورځو برخه کې خو څاڅکی د لمر نه شته
جنډې نه شوې د بېرو کې هغه شنې د چلم وربځې
وطن مې د شملو دی، خو یوه هم پر سر نه شته
یو ګل چېرته کمځو کې لکه ستوري زرغون نه شو
منګولې پر نکریزو او منګې پر ګودر نه شته
راشنه نه شوه پر ژبه د چا بیا میوندې کړیکه
شپېلۍ پر کړو بربتو، یو غمی پر خنجر نه شته
ننګیاله چې دې خوا کې نه ((خزان)) شته نه ((ټکور شته))
والله چې په دې ښار کې غزل نه شته، هنر نه شته.

۱۳/۷/۱۳۷۳
کابل

# کجاوې !

څوک دی؟ د کوم ځای دی؟ او چېرې درومي؟
نه پوهېږم !
چې د سهار د شنو وږمو د شنې زېږدا شېبه کې
د جامو غر په اوږو مات کړم
د شنه خوب د شنو اوبو په سین کې ولامبم او ستړی شمه
دی شي نږدې
سپینې جامې راځنې وتښتوي
او د غنمو پر وربښمینې پولې وخېږي او چیغې کړي چې:
ای لامبوزنه،
ای د سین سپینو کبانو،
ای د باغ مرغیو !
ما درته سرې، تورې جامې راوړي
راشۍ دا سپینې او خیرنې جامې وغورځوئ !
څه شېبه وروسته ددې کلي د مرغیو
او کبانو جامې نوې شي
سین تور شي
ونې تورې
کلی سور
او کلی تور غوندې شي

بیا کجاوه پر اوږو بار کړي
خدای زده چېرته به ځي.

***

کله چې پاڅم
هغه وینم چې روان دی
او د دښتو پر نویو لارو منډې وهي
او کجاوه یې زما له تکو شنو خوبو ډکه ده
بیا د کوچیو د کاروان مخې ته تم شي
او هر خوب مې
موتي موتي پر وریو او اوښانو وېشي
کجاوه بیا تشه شي
بیا درمو له مخې شنه وابښه راټول کړي
کجاوه له سره ډکه شي
موسکۍ شي
بېرته وخوځېږي
شپه شي، تیاره شي
نورو وربځو سره یوځای شي
باران شي
او له سترې کجاوې سره راوڅڅېږي
بیا د غنمو پر وربښمینو زلفو وخېږي
او چیغې کړي چې:
جامې مو سرې

جامې مو تورې،
او خویونه مو ژېړ !
داسې یو زېړی راته وکړي
او روان شي
خدای زده چېرته به ځي؟

۱۸/۲/۱۳۷۳
کابل

# چوپتیا

زما د کور څراغ ماښام نه تر سبا سوځي
او له ماښامه تر سبا
د خپلې ښکلې تنهايۍ له تورو زلفو سره مينه کوم
ما يې د زړه پر دښتې کور کړلی
ما د چوپتيا له سپينو تيونه
د ژوند د چينې غړپ کړی دی.

***

زما د کور څراغ ماښام نه تر سبا سوځي
خو به مې خيال
لکه يتيمې مرغلرې
د غزل له ياقوتي شونډو راونه څڅېږي
نور به د سترګو له هندارو نه د خيال
او د غزل شنه انځورونه ټول کړم
نور مې د خيال واګې چوپتيا ته ښنم.

۲۴/۲/۱۳۷۳

کابل

د عبدالقهار عاصي پر شهادت
یوه منثوره ویرنه:

## زه هم د رځم !

مور، چې سترګې غړولې
او مور، چې دادی سترګې غړوو
د مینې کیسه مو نه ده زده
مور، مینه نه پېژنو
وینه پېژنو
وینه او مړینه زمور، برخلیک دی
وینه او مړینه زمور، تاریخ دی.

***

مور، لا مینه نه ده لیدلې
مینه هغه کوچی باد دی چې پر غولې مو هېڅکله شین نه شو
مور، مینه نه پېژنو
زمور، نوم یې له وینې او مړینې سره تړلی دی

رښتیا ،
د((حسین ) ) او ((یزید ) ) کیسه دې زده ده؟
پېړۍ پېړۍ کېږي چې
د ((یزید ) ) په لاس کې توره شنه ده
یوه توره توره
یوه سره توره
هغه توره چې ((حسین ) ) پرې هره ورځ وژني
او د ((حسین ) ) پر مرۍ یې راکاږي
مګر تا د ((حسین ) ) مړینه لیدلې ده؟
مګر دا ((یزید ) ) نه دی چې هره ورځ مري؟
((مګر دا ((حسین ) ) نه دی چې هره ورځ زېږي؟ ) )
هو ،
موږ مینه نه پېژنو
وینه پېژنو
وینه او مړینه زموږ برخلیک دی
وینه او مړینه زموږ تاریخ دی
_ خو څرنګه برخلیک؟
د ((حسین ) ) برخلیک؟
خو څرنګه تاریخ؟
د ((حسین ) ) تاریخ !
رښتیا ،
زموږ نوم یې د ((حسین ) ) له نامه سره هم تړلی دی.

❋❋❋

ای تاته وایم !

مور دې په یاد یو ؟

زمور جونګړې دې په زړه دي؟

او کله دې زمور پر جونګړو

هغه بې بیبرې لوګي نه دي هېر؟

هلته چې خاوره یې یوازې یوه لویشت ده

نیم یې زندان او نیمه یې هدیره

هغه زمور کلی دی

او هلته زمور جونګړې شنې دي

هلته چې د نغریو پر سرونو لوګي له لوړې مري

او اوبه له تندې جل وهي

هلته زمور کلی دی

زه او ته هلته پیدا یو

زمور د کلي لاره پر ګلونو نه

پر اغزیو ده

پر دغو لارو زمور بیلې او تناکې پښې

پر لوټو

پر کاڼو لګي

زمور لارې قاتلې دي

زمور لاروي قاتلان دي

دغه سترې او قاتلې لارې

زموږ ستړیو کاروانونو ته
او به نه
وینې ورکوي
زموږ د ستړیو منزلونو وینې
زموږ د ستړیو ارمانونو وینې
هوکې !
موږ مینه نه پېژنو
وینه پېژنو
وینه او مړینه زموږ برخلیک دی
وینه او مړینه زموږ تاریخ دی
رښتیا ،
کله دې د سیندونو مړینه لیدلې ده؟
ګوره ! سیندونه هم مري
او زموږ نوم یې
د سیندونو له نامه سره هم تړلی دی.
❋ ❋ ❋
ای ! کله چې تېپې پرښتې
لکه د وینو څاڅکي
دانه دانه له اسمانه څاڅي
تا د اسمان د زړه چاودون شېبه
ای ! کله چې ورېځې
د سپوږمۍ د سپین کمیس تنۍ پرانیزي

تا د ستورو په سترګو کې
د وينو چغارې ليدلې دي؟
او کله چې ړلۍ
د غوټيو موسکۍ شونډې
په غاښونو ژيري
ته د ونو او ګلبوټو د ويرجن غزل کاڼو
پر زړه ويشتلی يې؟
هو کې،
سپوږمۍ مري
او ستوري هم مري
خو ته يې چېرې هديرو ته ناست يې؟
دا تيارې دي چې هره ورځ مري
او دا
سپوږمۍ او ستوري دي چې
ژو مري هو مره ژبږي

❋❋❋

موږ چې را زېږېدلي يو
او موږ چې دادی ژوند کوو
له غزل سره زېږېدلي يو
او له شعر سره مو ژوند کړی دی
غزل مو د ډوډۍ مالګه
او شعر مو د کور چت دی

زموږ ژوند شعر دی
یو تریخ شعر
او زموږ شعر ژوند دی
یو تریخ ژوند
خو تا کله د غزل مړینه لیدلې ده؟
او کله د شعر مړینې ته ناست یې؟
موږ مینه نه پېژنو
وینه پېژنو
وینه او مړینه زموږ برخلیک دی
وینه او مړینه زموږ تاریخ دی
رښتیا،
زموږ نوم یې د شعر له نامه سره هم تړلی دی.

❋❋❋

پوهېږې؟
زه او ته دواړه له یوې ونې یو
ته لاړې
خو باور لرم چې زه هم درځم
ځو دا شلېدلې ریښه یوه شي
باور لرم!
باور لرم!

۲۴/۷/۱۳۷۳

# مور ته مثنوي

مــوريږ دا غــر د غمــو چېرتــه يوســم؟
دا هـــديريږ پـــر اوږو چېرتـــه يوســـم
راتـه ميـراث يـو سـور ګرېـوان خو نـه دی
دا يــو يعقــوب او يــو کنعــان خــو نــه دی
هـره لوېشـت ځـاه ده هـره ځـاه کـې يوسـف
د هــر کــاروان د پښــو درزا کــې يوسـف.

❋❋❋

مــوريږ پــه وينــو کــې خــوټېږي چــړې
لکـــه بـــاران پـــر مـــوږ ورېـــږي چـــړې
دا پـــر يـــوه ((حســـين)) ژړا خـــو نـــه ده
دا يـــو ځـــو ورځـــې کـــربلا خـــو نـــه ده
راغــی پــه ســر راتــه بادشــاه شــو يزيـد
زمـــوږ د کلـــي شهنشـــاه شـــو يزيـــد.

❋❋❋

مـوريږ پـه زړه کـې يـو پرهـر خـو نـه دی
مــوريږ تنهــا قتــل د لمــر خــو نــه دی
دلتــه هـر سـتوری او سـپوږمۍ قتلـه ده
دلتـــه هـــر ګـــل، هـــره غـــوټۍ قتلـــه ده
مــوريږ لــوګی شــو او ســوزېږي وطـــن

مــورې پــه ســرو تــورو قتلېــږي وطــن.

❋❋❋

مــورې يــو ويــر او يــو ناكــام خــو نــه دى
دا يــو خوشــال او يــو بهــرام خــو نــه دى
دلتـــه يـــوازې مســـيحا خـــو نـــه دى
دلتـــه يـــوازې يهـــودا خـــو نـــه دى
دلتــه هــر كــاڼى او انســان شــو قابيــل
هــر يــو لســتوڼى هــر ګرېــوان شــو قابيــل.

❋❋❋

مــورې يــو غــر دلتــه ابــاد خــو نــه دى
هغــه پــامير، هغــه شمشــاد خــو نــه دى
دلتـــه كبـــان دلتـــه ســـيندونه ســـوځي
دلتـــه لـــه تنـــدې بارانونـــه ســـوځي
د بـــاغ نـــاموس راتـــه اغزيـــو لـــوټ كـــړ
پـــټ د كېږديـــو مـــې پرديـــو لـــوټ كـــړ.

❋❋❋

مــورې شــملې شــته خــو ســرونه نــه شــته
دېــرې مــو شــته پــه كــې كټونــه نــه شــته
بادونـــه راغلـــل چلمونـــه مـــات شـــول
هغـــه د كلـــي چنارونـــه مـــات شـــول
مــورې زخمــي دى مــورې وران دى ګــودر

یــو جــل وهلـــی بیابـــان دی ګـــودر.

❋❋❋

مـوري یـو غـم او زړه چـاودون خـو نـه دی
مــوري د وینــو یــو جیحــون خــو نــه دی
دلتــه هــر کــانې کــې جیحــون دی مــورې
دلتـه پـه خپـل کـور کـې بېلتـون دی مـورې
مــورې یــو تنــدر دې پــر کــور ولګېــد
ســتا پــر ســپېڅلې لمــن اور ولګېــد.

❋❋❋

مـــورې زړګـــی دې را چـــې ویـــې ژاړم
دا مـــات منګـــی دې را چـــې ویـــې ژاړم
زه دې د مـــړې ونـــې بلبـــل نـــه شـــومه
ســویو کمڅیــو تــه دې ګــل نــه شــومه
سـترګو تـه اوښـکې څـو پیـالې خـو راکـه
دعــا دې نــه غــواړم ښــېرې خــو راکــه.

۱۹/۸/۱۳۷۳

کابل

## زېرى(۱)

زړګيــه زېــرى زېــرى چــې وږمــه د ســبا راغلــه
زمــا د تيــارو کلــي تــه ډيــوه د ســبا راغلــه
بـاور مـې کلـه نـه شـو چـې بـه بيـا پېښـه راوکړي
دې قتلــو پســرليو کــې غونچــه د ســبا راغلــه
حيران وم چې ماشوم غزل به کوم غوږ کې ويده کړم؟
کاښــه کاښــه مالــت تــه مــې نغمــه د ســبا راغلــه
کلونـه پـس بـه بيـا پـر جـل وهلـې دښـتې ووري
لــه ســپينو پرخــو ډکــه لوپټــه د ســبا راغلــه
نه مړ نه يې ژوندى کړم دې مغول يوازېتوب مې
اى وږيــو هــوجرو زېــرى پښــتنه د ســبا راغلــه.

۲۵/۹/۱۳۷۳
کابل

# نیمګړی غزل

ولـول زلفـې خـورې کـړه غـوړوه رابانـدې شـپې
لـه تـورو شـپو دې جـار شـم ووروه رابانـدې شـپې
ږمـنځ دې کـړو کاکـل کـې اخـر زړه راتـه زخمـي
هر څاڅکی یې شو ستوری څځوه رابانـدې شـپې
ما ستا د خیال یو سیوری کړ د شپو لـه سپوږمۍ پـور
سـپوږمۍ شـه لکـه خیـال مـې بلـوه رابانـدې شـپې
هـر خـوب مـې وړی وړی دی هـر خـوب وهلـی جـل
کېـږدۍ مـې د لیمـو شـه خـوروه رابانـدې شـپې
سـتا سـترګې پښـتنې دي زه یـو سـتړی مسـاپر
د سـترګو پـه هـوجرو کـې تېـروه رابانـدې شـپې
بس دومره چې سپرلی شم او یو ګل شم د کمڅو
خړوب مې پـه دې شـپو کـړه بهـوه رابانـدې شـپې
ارمـان مـې د نیمګـړي غـزل هـېڅ نـه شـو پـوره
پـه لېچـو مـې سـر کېـده زنګـوه رابانـدې شـپې.

۲۷/۹/۱۳۷۳
کابل

# شپېلۍ(۱)

د غـره پـه ذهـن کـې خـوره شـوه شـپېلۍ
پـه سـرو ممـانو مېلمنـه شـوه شـپېلۍ
دا د کېــــږدۍ پلــــو خــــو واړوئ لــــږ
تللـې کـوچۍ وه راسـتنه شـوه شـپېلۍ
وري زلمـي شـول، اوښـې پېغلـې شـولې
لکـه څېـږې پـه غرونـو شـنه شـوه شـپېلۍ
ســــتورو جــــامې د اتــــڼ واغوســــتلې
د هســـک د ښـــتو ترانـــه شـــوه شـــپېلۍ
پښـــتني غرونـــو پـــه کـــې ســـاه پـــو کـــړې
ځکـــه درنـــه او پښـــتنه شـــوه شـــپېلۍ
راتـه يـې ښـکل کړلـې غمبـورې د خيـال
بيـا د غـزل د کـور ډيـوه شـوه شـپېلۍ

۳۰/۹/۱۳۷۳
کابل

# د زرتشت خوب

زرتشت تروني لاندې پروت دی
د ستړيا او د خولو دا خونړی سېلاب يې باد ته ايښی
زرتشت جل وهلی
زرتشت له ډېرو مودو پس د ستړيو ستړگو تورو څمڅو کې
د خوب له پرښتو سره تر غاړې وتی
زرتشت ويده دی
زرتشت جل وهلی.

❋❋❋

زرتشت ويده دی
زرتشت جل وهلی
زرتشت د خوب د پرښتو د وربلونو د ماښام پر ځنګله نه مړېږي
زرتشت د ښکلو پرښتو د اننګيو په هندارو کې خوبونهويني
زرتشت ويده دی

زرتشت جل وهلی
ای د ځنګلونو
او د غرونو لویه خدایه!
نه پوهېږم
هغه مار چېرته دی؟

۱۸/۱۱/۱۳۷۳
کابل

## راته وناځه هنداري !

نن مې اوښکې
دا د سترګو له صدف نه څڅېدلې مرغلرې
زما د ځيرې اوبو وړي ګرېوانه خړې دولۍ کې
لکه ناوې سرې منګولې د ښو پر ځنګله ايښي
د پښتون کور ناوکۍ ده
په خوله ژاړي
نن مې اوښکه ناوې شوې
راته وناځه هنداري !

❋❋❋

نن مې کب د سرو ويرونو
د غمونو د ويرجن سيند
د تورتمو، لېونيو او ياغي څپو د زړه پتې کښېدۍ نه

د ښکاري خندا د جال مزو کې کېوت
نن مې لوند ګرېوان وچ شوی
خو یو څاڅکی په کې شین دی
ته به وایې د لمر کور دی
ته به وا د سپوږمۍ شپه ده
نن مې اوښکه ناوې شوې
راته وناڅه هندارې!

۲۷/۱۱/۱۳۷۳
کابل

# د رځنې لاړم کليه !

ځو مره ښايسته دي
زموږ د کلي چم کې
دا د شنه سين په شنو اوبو کې
د کبانو بچي.
ځو مره ښايسته دي دې ويالو کې
د هيليو دغه سپينې لونې
د دوی نازکې منډې
د دوی نازکې چيغې.

***

ځو مره ښايسته دي
زموږ د کلي
د سپېدارو ترټيکريو
غرمني خوبونه
او مازيگر په شنو چينو کې
د کرۍ ورځې ستړياوو مينځل.

***

ځو مره ښايسته دي
زموږ د کلي په چېلو کې
د انگورو ښيښې
او د گيلاسو د وړو وړو نيالگيو

ګنې، ګنې شنګلې
چې سرې مرۍ یې دي
زموږه د باغو
د ښاپېریو یاقوتي غوړوالی.
❋❋❋
 څومره ښایسته دي
زموږ د کلي
د غوزانو هسکې، هسکې ونې
او د ښاخونو په هر رګ کې یې
د مست زړګي د وینو لپې
چې ترې غریبې پېغلې اخلي
خپلو شونډو ته
د حسن خدایي رنګونه.
❋❋❋
څومره ښایسته دي
دې ګودر کې
زموږ د پېغلو د شینکیو منګوټیو
د چاودون
او ماتېدلو اواز.
څومره ښایسته دي
دا زموږ د کروندګرو
د څپرو کلی.

ځو مره ښايسته ده
دا زموږ د لوګرو
دا هاړ دېره.
زه درنه ځم
د خداى پامان
درځنې لاړم کليه !
مادې د حسن په مالت کې
ددې وخت د سوداګرو
وينې ځښو نکې سترګې چېرته پرېږدي؟

# دروغ

ډېرو ډېرو ښکلو مې
پر دښتې د سینې، د تورو زلفو شپې زرغونې کړې
ډېره د اورنیو اننګیو د لمبو د سیند څپو کې
زما د شونډو ببړۍ تاوه شوه راتاوه شوه
شپه د تورو زلفو
او وړمه د اننګو شوم
خو دا ګل
او دا شاعر زړګی د چا نه شو
ډېرې مودې وشوې چې مې زړه
د ستا د زلفو په ځنګله کې
د ماښام د شپېو ستوری دی
زه د هېچا نه شومه
یوازې ایکې ستا شومه
تا هم راته دروغ ووې دروغجنې،
درواغجنې!
درواغجنې!
هغه ګل، هغه شاعر زړګی مې بېرته را !.
۱۳۷۴ل
کابل

# غزلبولې

ما یې په سترګو کې کېږدۍ وهلې
خدایه ! ګرداب کې مې بېړۍ وهلې
چې یې په شپو کې خپل غر هم شي ترې ورک
هغو کمڅو کې مې غوټۍ وهلې
دا چې یې نن لاره کې سم شین شومه
نیمو شپېو کې مې پېړۍ وهلې
دا د باران څه زړه چاودون خو نه و
ما یې پر بام باندې سلګۍ وهلې
ترې غزلبولې چغې هم نه وري
بیا یې پر تپ راته پتۍ وهلې.

# سیند ته غزل

رژېږي پانې پانې تش ګرېوان شولې ای سینده !
یو ښار وې د هندارو ولې وران شولې ای سینده !
یوه مسته نغمه نه شوې په ورا کې د کبانو
نه دې سپینو هیلیو ته جانان شولې ای سینده !
پرون خو د شپېو د ناوې پېغله ښکلا ته وې
خو نن یې لکه زلفې پرېشان شولې ای سینده !
سپین ږیری جاله وان د کلي نه شته مودې وشوې
دا اوس ولې په سترګو کې حیران شولې ای سینده !
اشنا ګوره چې بیا دې د څپو زمري ګونګي دي
ارامه غلو وهلی یو کاروان شولې ای سینده !
یو لور وې د شنو ولو خو اوس ښکاري چې په خپله
کبږدیو غوندې ونه د بیابان شولې ای سینده !.

۱۳۷۴
کابل

# غزل

د غره تر غاړې ناست یم شپه سپوږمۍ سره کومه
خبرې دې جانانه ! له شپېلۍ سره کومه
ستا سترګې خو کوچۍ شولې ایلبند په ایلبند ګرځي
اوس جنګ د هغو سترګو له هوسۍ سره کومه
نازونه خو تا وکول پر ما باندې زوال شول
د خال پر ځای دې مینه تروږمۍ سره کومه
ما خوب درځنې وړی دی خپه چې نه شئ ستورو !
ګیلې یې لکه وربځې له سیلۍ سره کومه
یو غر دی او څو کاڼي یوه شنه کبله نه شته
باران شوم ژړاګانې له کېږدۍ سره کومه.

۲/۱/۱۳۷۴
لغمان

## شپېلۍ (۲)

شپېلۍ د پرخو پرخو شونډو په غرمو وري
شپېلۍ د سترې شپنې لارې ته کښېږدۍ وهلې
شپېلۍ په للمو للمو غرو اوري.

❋❋❋

شپونکیه ! ماته دې شپېلۍ مه شه
د جل موسم دې،
د جل شپې دې
او د وربځو اوښې بیا شنډې دي
راته یو څاڅکی د باران خو شه !
باران پښتون شو
د خپل کور پر بامو نه وورېږي
باران ورغلی په پردیو ووري.

❋❋❋

شپېلۍ پر للمو للمو غرو اوري
شپېلۍ د سترې شپنۍ لارې ته کښېږدۍ وهلې
شپېلۍ د پرخو پرخو شونډو په غرمو اوري.

۸/۱/۱۳۷۴
کابل

# غوښتنه

ما دې د تن سپينې ښيښې نه هغه سره شراب لا نه دي څښلي
ما دې يوازې دوه غوټې د اننګو ښکل کړې
خمار دې کړمه خو نشه دې نه کړم
د بېسدۍ هغه شېبه دې نه کړم
تندې اخيستی يم
شراب قطره قطره خو راکړه
د مرغلينو ښيښو منځ کې
د خوږې ګناه کاله ته
اجازه خو راکړه !

۱۴/۱/۱۳۷۴
کابل

# د وینو غزل

مـادې اوړدې لارې ښارلې خـو اشـنا مـه راځـه
قـدر دې نـه شـته پسـرلیه پـر دې خـوا مـه راځـه
مـوږه د شـپې د تیـو روږدي یـو سـبا څـه کـوو
وړانګې دې ټولې کړه ورځـه دلتـه سبا مـه راځـه
مـوږ د مرګـي غشـي پـر زړه هـر مـازیګر خـوړلي
د نظـر غشـیه پـر دې سـوې کـربلا مـه راځـه
دلتـه سـارا د دیـدن قتلـه ده، هـر کـانې قتـل
دلتـه یـو پـل د مجنـون نـه شـته دی لـیلا مـه راځـه
د ویـر پـه چـم کـې خنـدا ګانې اوربـدی کلـه شـم؟
یـو اسـویلی شـه راتـه ډکـه لـه خنـدا مـه راځـه
د ذهـن وران یـو کـور مـې شـته پـه کـې د وینـو غـزل
دې بې قـدرۍ کـې د ښایسـت غزلـې بیـا مـه راځـه.

۱۵/۱/۱۳۷۴
کابل

# غر (۳)

غر مې د زړه پر هره پاڼه لکه ګل شین دی
غر مې چې زړه سمسورې د ښتې کې کېږدی، وهلې
لکه د ستا چې کشمالیو کې کاکل شین دی.

❋❋❋

زړه مې کوچی دی
وینه مینه په کې غره کرلي
کوچی بوډا شو،
کوچی مري،
خولا د غره په مینه موړ نه شو
کوچی دغره پر شګو ناست دی
دغره کاڼو ته لمونځونه کوي
کوچی چنار دی پاس د غره په تور وربل شین دی
غر مې د زړه پر وطن ټوله لکه کابل شین دی.

۲۵/۱/۱۳۷۴
لغمان

## غر (۴)

ماته د غره د لاسو بوی راځي
مېږې وېدې دي زما روند سفر په خوب کې ويني.

❋❋❋

هلته به غر د شنه سپرلي د دسترخوان پرسرلګيا وي
د باران پر رڼو څاڅکو به لاسونه مينځي
غره به د څانګو پر وربښمينو تيو خوله ايښې وي
او ګلورينې پې به څاڅي څاڅکي څاڅکي له ګرېوانه د غره
هلته به سپين سهر ساقي وي
د غوټيو کندولیو کې به وېشي دوړ موشراب دغره پرجل وهلو کاڼو
هلته به سيورو د ځېړيو ته شپونکی اشناشپېلۍ غږوي
. ماته د غره د لاسو بوی راځي
مېږې وېدې دي زما روند سفر په خوب کې ويني.

۲۵/۱/۱۳۷۴
کابل

# آس (۲)

آس لکه بوت هسې حیران ولاړ دی
نور یې له پوندو نه گردونه د زلمو پر څنو نه وورېږي
آس لکه مست ښامار،
دغـاړې هســک بېـرغ پرخپلو شـلو او خوب وړو اوډو نـه شــي
وړلای.

***

آس لکه بوت هسې حیران ولاړ دی
نوریې د تورو غزلونه د گامونو تندرونو کې زرغون نه شول
نوریې د لوړو غرو له څوکونه ارنه وړلې د شنو شنو توپانونو کیسې
دا آس بې تورې،
بې جنډې
څو مره بد رنگ ښکاري !

۱۰/۳/۱۳۷۴
کابل

# خوب

پرېږده یوه بله پیاله هم په سر واړومه
❋❋❋
بېګاه مې خوب لیدلی
له سرو ګلابو پرښتو راته جامې اودلې
ستوري مې زانګې دګرېوان په لیکو
دلاس غل مې رانه ورک دی
ستا دزلفو توروشپو نه راته شپې راوړي
اود غنمو نارنجي فصل کري راته په سترګو کې
د ورېو نارنجي خوبونه.
❋❋❋
پرېږده یوه بله پیاله هم په سر واړومه.

۱۰/۴/۱۳۷۴
کابل

## غر (۵)

غر،
سیند،
ځېږې،
زه له همدغو جوړ یم
غر مې هډوکي
سیند مې وینه
او هر رګ مې د ځېړیو ځانګه
زما یې نوم د غره او سیند او دځېړیو په لاسو لیکلی.

❋❋❋

غر د ځېړیو شنه شمله په سر د کلي پر دېرو خور دی
د خدای له شنه تخته پرې ووري لکه سپین باران
د پېغلو پېغلو ستورو حورې
سیند تر غېږې لاندې ناځي
او ځپې ځپې تیونه یې اوبه اوبه شول.

❋❋❋

سیند،
ځېږې:
زه له همدغو جوړ یم
مور مې د غره د سرو لمرونو د توپان هغه زړه ابی ده
ټوله ورځ
د لمر په سرو وړانګو ډوډۍ پخوي

پلار مې دغره هغه ګور بت دی
چې تر سیورو د وزرونو یې
د وربځو د کاروان د توپاني او ښانو پل وچ دی.
❋❋❋
غر،
سیند،
څپې:
زه له همدغو جوړ یم
چې د ګناه او ګناهونو میندې لنګې شي،
له خولې د جبرائیل نه د غضب ځګونه لارې وکړي
نوح مې د غره پر سره کېږدی غوړوي
زموږ ه غرونه توپان نه پېژني
د ازادۍ او عشق نومونه ملایکو ته زما د غرو شملو ښوولي.
❋❋❋
مورمې د سنید څپو ته ناسته ده
په لمر راته ډوډۍ پخوي
پلار مې ګور بت دی
راته بولي د څپو د شنو څانګو
او د لوړو لوړو غرو د شملو سرود.
۲۰/۴/۱۳۷۴
کابل

# دا کښتونه- دا بادونه

دا ترڅو باران د اوښکو؟
دا ترڅو د تورو وریځو چپاوونه؟
دا ترڅو قتل د لمر، قتل د سیورو؟
دا ترڅو زما کښتونه، ستا اسونه؟

❋ ❋ ❋

دا ترڅو زګېروي د باغ، د سپوږمۍ چیغې؟
دا ترڅو د شپو په موټو کې قمچینې؟
دا ترڅو د بې حیا پردې په تورو
راته وژني پښتنې پښتنې مینې؟

❋ ❋ ❋

دا ترڅو د مینې تور سفر ته لارې؟
دا ترڅو نېزې د باد، کمڅۍ د ګلو؟
دا ترڅو پر دې هوجرو یرغل د واورو؟

دا ترځو تبر په غاړه کې د ولو؟

❋❋❋

دا ترځو دا خوارې ځمکې، خوارې سپارې؟
دا ترځو دغه نهر نهر فصلونه؟
دا ترځو زخمي ورغوي د لوګرو؟
دا ترځو يې له تناکو نه باجونه؟

❋❋❋

دا ترځو د ريا سپين څادر پر ولو؟
دا ترځو په رڼا ورځو کې لمونځونه؟
دا ترځو تسبې په بنګو کې لړلې؟
دا ترځو په تورو شپو کې ګناهونه؟

❋❋❋

دا ترځو مې بې پتې د سرو غوټيو؟
دا ترځو د ستا اغزي زما باغونه؟
دا ترځو په دې پردي پردي ټوپکو
قتلوې دا زما خويندې، زما ورونه؟

❋❋❋

دا ترځو وطن زموږ واک د پرديو؟
دا ترځو وطن زموږ حکم د نورو؟
دا ترځو زموږ د باغ پېغلې بلبلې
ګډوي راته هوجرو کې د سرزورو؟

❋❋❋

دا ترځو به نه اذان نه جوماتونه؟

دا ترڅو به نه ساقي نه يې جامونه؟
دا ترڅو د ابليس سره لمبه لاس کې
راته سيزي کله کور کله ښارونه؟
❋❋❋
دا ترڅو د ورور په وينو کې منګولې؟
دا ترڅو د مور په سترګو کې کوکارې؟
دا ترڅو مې د وطن ابۍ شهيده؟
دا ترڅو مې د ولس، دا لارې لارې؟
❋❋❋
ما ويل چې که ها سيوری دلته وشي
زه به بيا لکه انګور ببرته زلمی شم
ما ويل چې که ها لمر ببرته ژوندی شو
زه به ټول لکه ماښو ورته لوګی شم.
❋❋❋
ما ويل چې که دا شپه چېرته سبا شوه
بيا به نه زيړي بګوې له تيارو نه
ما ويل چې د اسمان شمله به وچوي
ددې ښکلو ښکلو ستورو له غونچو نه.
❋❋❋
ماويلې چې يو ځلې که سپرلی شو
بيا به جوړ شي پر کمڅو د ګلو غرونه
ما ويلې که يوه ځپه شوه وبښه
بيا به زېړي له لښتيو نه سيندونه.

***

خو مې کښت دې لېونو اسونو لوټ کړ
د لورونو غاړې يو وړلې زنګونو
د کوچيو د کاروان مخې ته تم دي
دا اسمان اسمان اغزي زما د غرونو.

۱۳/۴/۱۳۷۴

لغمان

# غزل

موسم ومه د جل، رانه باران شولې ورېمې !
څادر مې شوې، تنهې مې د ګرېوان شولې ورېمې !
دا زه وم چې مغرب ومه د ښکلو د سجدو
دا ته يې چې سجدو ته مې يزدان شولې ورېمې !
دا زه هغه زه نه يم ټول تصوير يم ستا د مخ
زه سيوری ستاد سترګو، ته مې ځان شولې ورېمې !
يوه شمعه مې بس وه د تياره کاله د شپو
تيارو ته مې د کلي چراغان شولې ورېمې !
تالو کې ژبه وچه د غزل مې وه پرون
نن ټول شومه غزل چې مې جانان شولې ورېمې !

۵/۵/۱۳۷۴
کابل

# اورنی پر درمندونو

دلتــه مــه راځــه اشــنا پــر کلــي جنــګ دی
هــر مالــت او هــر ګــودر پــه وینــو رنــګ دی
دلته ښکلي کمڅې سیورې دي باغ نه شته
دلتــه مېشــت د تیــارو زور دی څــراغ نــه شــته
دلتــه شــنه دي لــور تــر لــوري توپانونــه
دلتــه مــړه دي پــه نغریــو کــې اورونــه
دلتــه ځالــه د ګورېتــو پــه اور ســوې
دلتــه زېــړې لــه زمریــو نــه بګــوې
دلتــه شــرنګ نــه شــته مړونــد کــې د بنګړیــو
دلتــه پــل کلــي کــې ورک دی د ســړیو
دلتــه مــري لــه ډېــرې لــوږې تنورونــه
دلتــه اور اخلــي لــه تنــدې نــه ســیندونه
د پردېســو ګــاولي نــه شــته پــه دېــرو کــې
د ربــاب ســتونی وچ شــوی دی هــوجرو کــې
دلتــه تېتــې د پښــتون لــوړې شــملې دي
ســپکې شــوې مــو د مینــدو لــوپټې دي
هــر قــدم کــې پــایکوبي ده د دېوانــو
هــر لوېشــته کــې کــورګی دی د پېریــانو
لمــر یــې وواژه د شــپو دلتــه یرغــل دی
قتــل شــوی مــې پــه شــونډو کــې غــزل دی

تـــاووي راتـــه پـــر ژبـــو زنځيرونـــه
ســـړوي راتـــه ككـــرو كـــې اورونـــه
درښـتيا لـوريې چـې ويښـه كـړه تربـور شـو
چـې د حـق نـاره يـې جګـه كـړه منصور شـو
چې يې ((نان)) ته ((ډوډۍ)) وويلې فاشست
شـــــــــــــــــــــــــــو
چـې ږيـره پـرمخ نـه وه كمونيسـت شـو
يـو خنجـر دى څـو چـړې دي څـو لاسـونه
راتـــه ريبـــي د وطـــن دمـــور رګونـــه
رالوېـــدلي دنيكـــه دســـر پګـــړۍ ده
خـــواره شـــوې د زړې ابـــۍ كېـــږدۍ ده
يـو ((اكبـر)) بيـا ددې غرونـو بچـى نـه شـو
يـو ((ايـوب)) د ميونـدونو سـړى نـه شـو
فرهاد شته دى، تېشه شته خو غړيې نه شته
پښـتانه هسـې ژونـدي دي زوړ يـې نـه شـته
دا چـــې نـــن د خـــونړي كـــاروان رهبـــر دى
د اوبـــو د ژيـــو هغـــه ســـوداګر دى
د زرتشـت اور يـې شـهيد كـړ سـيلاب راغـى
اورنـــى پـــر درمنـــدونو دريـــاب راغـــى.

۲۲/۵/۱۳۷۴

كابل

# زېږدا

هغه ګړۍ خدای د جنت د ښکلو حورو
د لیمو پاڼو کې
د ښکلا ګلو ته په لپو ورکولې اوبه
چې ته راوزېږېدې
او ته د خدای دباغیچو د سرو ګلونو
هغه شنه ((وږمه)) شوې.

۲/۷/۱۳۷۴
کابل

# زېرې (۲)

زما په سترګو کې يې شين فصل د وير کړلی
د لمر زخمي زخمي کوترو ته
يو زېرى د باران خو مې شه !
کوچيان په سره وچکالۍ راغلل
دې وړو وړو وريو ته د اوښکو دسترخوان خو مې شته !

۹/۷/۱۳۷۴
کابل

# بې ننبې

پوهېږم نه،
له کومه ځایه یې پر ما باندې راپېښنه کړې؟
دلته یې سیوری هم د ځمکې په سر خور نه دی
په سپینه تنده کې یښنه د تبر نه شته
د زلفو باغ نه یې دښار د بازاري ګلونو بوی نه خېږي
نه یې خو ښکلوانګو کې د شنو کلیو دتاودوبادونو مچه ښکاري
پوهېږم نه،
له کومه ځایه یې پر ماباندې راپېښنه کړې؟
داسې حیا د پرښتو سترګو کې هم نه شته
دا سترګې نه دي
د حیا چینې دي.

۲۲/۷/۱۳۷۴
کابل

## غر (۲)

د باد له څڼو مې د غره د هغه شنه ځنګله سلام راځي
باد مې د غره د سپينو کاڼو په هندارو کې د خپل زلميتوب خوب ليدلی
باد مې د کلي د تيارو شپو تورو زلفو ته د غره د رڼو ستورو کجاوې راوړي.

❋❋❋

که چېرې نه وای غره !
زما په سترګو کې نو ځالې د ګربتو ځايېدلې کله؟
ما به دلمر تېپې تور زنو ته د پاڼو پر ورنونو طلايي خوبونه چېرې پلټل؟
او که ته نه وای غره !
ما به د خپلې هسکې غاړې دغه دننګ اس ځغلولو چېرې؟

۲۲/۷/۱۳۷۴
کابل

# خوب ته سرود

خوبه ! ځادر راباندې وغوړوه
نور مې ویده کړه چې ویښتیاوو ستړی کړی یمه
نور مې ویده کړه چې له ویښې نه مې کرکه راځي
زه چې ویده یم ویښ یم
خوبه ! ځادر راباندې وغوړوه !
خوبه قربان دې شم
نور ماته ددې ورځو دا بربنډې پېغلې مه راښیه
زه یې د سترګو په هندارو کې
د اور او د سکروټو او لمبو ازانګې نه شم لیدی
زه خپله لاره بې له شپو په رڼو ورځو کې موندلای نه شم
ورځ مې د سترګو په هندارو کې اورونه کري.
خوبه ویده مې کړه
ځادر راباندې وغوړوه !.

۳۰/۷/۱۳۷۴
کابل

## تش صدف

ځانګه مې و چه ده غوټۍ نه لري
هغه کوچۍ یم چې کېږدۍ نه لري
هغه صدف یم چې ترې لوټ شوه سیپۍ
زه هغه شپه یم چې سپوږمۍ نه لري.

۱۴/۸/۱۳۷۴
کابل

استاد رشاد ته د هغه د ځلوراویایمې کلیزې په مناسبت:

# جامِ جم

مشـوانۍ یـې رانـه یـوړه قلـم نـه شـته
بت پرست یم خو مې ښکلی صنم نه شته
یـوېې تـه یې دامنې؟ چې ټـول وطـن کې
بـې لـه څـو تنـو نـه زوی د ادم نـه شـته
ستا درنې پګړۍ ته څه وکړم حیران یم
دې مالت کې بې له ځوزو شړشم نه شته
نن دې نوم ځکه په خوله اخیستی نه شم
مـا مینځلـه خـو جانانـه زمـزم نـه شـته
زه دې سـترګو کـې هـر رګ د جهـان ویـنم
څومره دروغ دي دا چې بل جامِ جم نه شته.

۱۷/۸/۱۳۷۴
کابل

# له خوشاله تر ننګياله

مالي راشه اغزو د زړه پر ګل وهلی يم
((سقاو)) په زړې توري د ((مغول)) وهلې يم
رقيب به مې د زړه له وينو تشه((ژی)) کړې ډکه
خو سر مې د ايل نه دی که يې سل وهلی يم
يو ګل څه په کمڅو کې د پښتو دناوې نه يم
ناره د ((اناالحق)) يې په کاکل وهلی يم
حيران يم د ((اکبر)) پر مړي بيا څه پسات شوی
پرديو مې د خپل کور په درشل وهلی يم
تقدير به مو وي داسې له خوشاله تر ننګياله
همدا چې کله غيرو، کله خپل وهلی يم.

۷/۱۰/۱۳۷۴
کابل

# ((یاسیر)) نه مري

((یاسیر)) روان دی د ایمان بیرغ په لاس کې
د خپل ژوند د دوروستني ټکي شهید په خپلو وینو مینځي
((یاسیر)) له سره زیږي
((یاسیر)) په زړه د اناالحق فصل کرلی
اهریمن د توپانونو پرې خپیږې او د تندرپرې سپرغۍ وروي
فصل د مرګ نه پیژني
((یاسیر)) د شنه فصل د وږو پر وینمنو کمڅو سوری کړی.

❋❋❋

((یاسیر)) دلمر له کلي ځي د زنداني ستورو خلاصون ته
تورې وریځې د شهید زړه په سرو وینو ولي
((یاسیر)) د ښکلې ځوانیمرګې سپوږمۍ غوږ کې
د مسیح د ژبې دم د رغېدلو ولوست
((یاسیر)) د خپلو نارو ونه ددې شپو په اسماني دښتو کې کېنوله.

((ياسير))روان دی د سفر د لارې غرونه، ځنګلونه ريبي
((ياسير)) د پوانو ته بلنه د جګړې ورکړې
((ياسير)) لګيا دی د منزل مزي په پښو کې د يارانو شيندي
او ورته ښيي د فلاح سرود
((ياسير)) د خدای(ج) د پاکې مينې د اسمان ستوری
((ياسير)) د ((قاف))دغره د څوکو د ښايسته ښکلو پيريانو
غزل.

۳/۱۲/۱۳۷۴
کابل

# د چغو تصویر

زما د چغو شین تصویر دې مات کړ
زما نصیب، زما تقدیر دې مات کړ
هغه ریبار خوب مې اوس هم نه راځي
څه د دیدن ښکلی زنځیر دې مات کړ
راته په برندو سترګو ګوره خو مه
زما د زړه د کوټې تیر دې مات کړ
شپه شهزاده وه، کیسې وې او عشق
دغه د ټول عمر شوګیر دې مات کړ
چې یې راوستې زلزلې پر وطن
ګرانې کچکول د کوم فقیر دې مات کړ.

۶/۱۲/۱۳۷۴
کابل

## غر (۷)

د غره پر کلي مې د سرو ګلونو سیند راغی
زما د غره په وینو سرې تیږې ډولۍ شوې
د سپرلي ناوې ته
غر مې د وینو او ګلونو د غه سرې سرې پګړۍ دواړه تړي.

***

د وربځو اوښې مې د غره په تورو څڼو
هر سهار څري
غر مې شپونکی دی
د شنو پاڼو په شنو لوښو کې د تورو شپوله تیو ځنې ستوري لوشي
غر مې رمو سره نارې د سرو لمرونو کوي
غر مې د وینو تار په لاس کې
له غوټیو نه جامې جوړوي.

***

غر مې څېرې څېرې راخور دی
پر ټپې ګوربتو سیوری کوي
غر مې لاسونو د زخمي زخمي ګوربتو کې

له شپو سره جګړې ته
د رڼو ستورو لورونه کړي
زما د غره ګوربت د زړه د رڼو وینو د یاقوتو له د برې نه
راته باد د ازادۍ وورو ي
زماد غره نوم
د سرو وینو
او د ګل
او ازادیو نوم دی
غرمې د وینو او ګلونو د غه سرې سرې پګړۍ دواړه تړي.

۲۳/۱۲/۱۳۷۴
کابل

# خوب په اېينه کې

لمرشود شنو پرخو ښېښې يې راته ماتې کړلې
څه د ګلپېغلو لوپټې يې راته ماتې کړلې
ګوره ګوزار مې د پښتون اشنا څه سم ولګېد
زولنې پاتې شولې پښې يې راته ماتې کړلې
زمادزړه خم يې که تش کړ، تشوي دي خير دی
څومره ظالمه ده پېالې يې راته ماتې کړلې
مايې د سترګو اېينې کې و يو خوب ليدلی
دې مې کور وسو اېينې يې راته ماتې کړلې
داسې سجدې سجدې چې وايې ړوند خونه يې ملا
چېرته سجدې وکړم کعبې يې راته ماتې کړلې.

۴/۱/۱۳۷۵
کابل

ذبیح الله انیل ته:

# له ابلیس سره

کلونه وشول چې مې روح
د خدای د مینې د غوټیو په شینکۍ ځولۍ کې نه ځایېږي
ماد ابلیس اشنا د ښکلو سترګو پاڼو کې
د حسن او د مینې غوړولی څادر
خدای رانه کړکه لري
مګر شاعر ابلیس مې سترګو
او د شونډو جادو د ښتو کې لګیا دی
راته زړې د غزل کري
څوک مې د ښکلې شاعرۍ په قدر نه پوهېږي.

❋❋❋

کله چې شپه شي
د خوږې ګناه د پېغلې د سرو شونډو جام پر سر واړوم
ابلیس د حورو د سرو شونډو د سرو پاڼو

کليمې پټې کړي
او د غزل لونګين خور کړي زماد شونډو پر شاعرو پاڼو
کله دې خوب کې د ((حوا)) د چمبو غږ ليدلی؟
چې يې غزل ته ((آدم)) مست شي ان له شپې نه ترسبا
پورې
هغه چمبه، هغه غزل زه يم
نو ته چې ځې را پسې ژاړې ولې؟
لکه ابليس درسره مل يمه زه.

۲۸/۱/۱۳۷۵

د استاد روهي په مړينه:

## هغه غر، هغه سیوری

ډک جام مې له منګولو د جانان ونړېده
یو ستوری له لمنې د اسمان ونړېده
دا شپې به د کیسو د زماني راته څوک راوړي
ای عشقه چې رباب د ادم خان نړېده
یو شین قامت چې رنګ دی او یو شین سیوری چې نه شته
یو ګټ مې له دې غره نه د افغان ونړېده
حیران یم د غزل شبنم به خدایه چېرته تم شي
زمو ږ چې د شعرونو سایبان ونړېده
ځولۍ به څنګه رنګه د پښتو دابې نه وي
یو غر غوندې روهي د روهستان ونړېده.

د ۱۳۷۵ل کال غبرګولی.

## وير، مينه

هلته پر مړو ژاړي
خو زه او ته لکه جوړه بتکې
د غبرګو غبرګو څپو غرونو کې بربنډ ناڅو.

❋ ❋ ❋

هلته پر مړو ژاړي
هلته د وچې کربلا د تيرو ښار کې
د سرو وينو ناليدلې سرې غوټۍ ښکلوي
خو زه د کب په شانې
ستا د مچکو سمندر کې لامبم
ته لکه سره انګور په وينو لنده
زما د لاسو د ونې څانګو کې ټالونه وهې
موږ نه ((يزيد )) او نه ((حسين )) ليدلی.

کابل
د عاشورا ورځ
۸/۳/۱۳۷۵

پیر محمد کاروان ته:

# مینه او ژوند

یوه زړه ونه خوره ده پرې
تر سیوري یې یو ځوان ناست دی
یوه سپینکۍ پیشو یې غېږ کې ویده
اود ورځپاڼې په هر توري کې یې سترګې.
شونډې چلم ته ورنږدې کړي
ورنه واخلي د لوګیو امېل
ورو ورو په شونډو کې موسکی شي
د پیشو په غوږ کې ناري کړي او وایي چې:
- پیشو تا مینه کړې؟
مینه د چرسو یوه شنه نشه ده
مینه ورځپاڼه ده
په ژوند کې یې پو ټکی د رښتیا نه شته.

- پیشو ! پوهېږې چې ژوندون څه دی؟
ژوند د شنو چرسو د وریښمینې نشې شین واټ دی
چې د ارمان اس په کې وځغلي
او ستړی شي
او ومري په کې
او د کوڅو سپو ته یې تشه شان کیسه پاتې شي
پیشو ! تا مینه کړې !
پیشو ! ژوندون څه دی؟

۱۲/۳/۱۳۷۵
کابل

# کوچي په باران کې

ستورو د شپې پر تيو خولې ايښې ارام ويده دي
د شپې مانۍ نه د سپوږمۍ پېغله زلمو ونو ته نه راګوري
نرۍ باران ووري
او د بادونو هوسۍ
د ځوانې دښتې د تيونو پرګلونو څري
هلته يو ستړی کوچی
د پټاسو دستمال په لاس کې د باران د طلايي مچيو
له شنې ورا تېرېږي
په لاره ځي، ځان سره وايي کوچي:
نرۍ باران دی
له کېږدېو نه د سپو د ويښې غږ نه راځي
درخو به خوب وړې وي
دا خو به څوک ويښه کړي؟
ستورو درواغ وويل.

۲۱/۳/۱۳۷۵
کابل

# کله چې لمر ګل وکړي

کله چې تال د شپې راوشلېږي
د سترګو په هنداروکې د لمر کوترې ځالې وکړي
کوترې سپین وزرونه پرانېزي
د خوب د شنو ځنګلونو ماتو څانګو نه دانې ټولې کړي.
کله چې مخ د سهار ګل شي
او د شاتو مچۍ ټولې شي پرې.
کله چې کانې د ښوونځیو د تبیو تندی ښکل کړي
او ماشومه نجلۍ
له تور کمیس او سپین سالو سره په لاره کې خوره وره شي
لکه د وربځو او سپوږمۍ د ودېدلو شپېه
کله چې وړو ماشوم د تورې تختې مخ باندې
د سپین تباشیر خال کېږدي
او شپېه وروسته ماشوم وړی شي
د وړو جزدان له واښکو نه د ږیو مهار لرې کړي
د وچې ډوډۍ ښکار وکړي
راشئ مین شئ پرې
او مینه وکړئ
زه چې زلمی وم هره ورځ مین وم.
۳۰/۳/۱۳۷۵
کابل

## د باغ غزل

سپرلی شو پېغلې د ښتو ته ورږمو کې وایي څه
ای ونې ! شینکی باد در ته نغمو کې وایي څه
شاعر سیند مې نن خدایزده چې لیکلی کوم غزل
لړ تم شه ورته عشقه ! چې څپو کې وایي څه
رمو ته د ګلانو سهار څه ویل شپېلۍ؟
کوچۍ موسکا دې ګوره چې اینو کې وایي څه
یو وږم دې کېږدۍ نه د ګرېوان ووت څه یې وې
یو خوب دې په ټوکریو د لیمو کې وایي څه
یو باغ یې خو زرغون کړ چې غوټۍ وکړې لاسو
ستا خیال مې نور د سترګو په زانګو کې وایي څه؟

۴/۴/۱۳۷۵
کابل

# یو شین انځور

له مانه څه شی غواړې؟
ماته د پلار تر مړینې وروسته
درې څیزونه په میراث پاتې دي
اس
او هوجره
او یوه سره په وینو ولړلې توره.
❋❋❋
له مانه څه شی غواړې؟
دغه د منډو
او د وینو
او ډوډۍ د واده شین انځور؟

۱۳/۴/۱۳۷۵
کابل

## بیه

کلونه وړاندې مې ورته ووې:
دا ستا د شونډو څاڅکی په څو دی؟
وې: ستا د پلار او د نیکه وینه
او نن مې بیا ترې، پوښتنه وکړه:
ټول پېغلتوب دې وایه په څو دی؟
راته یې ووې:
ګرانه!
یوازې یوه ډوډۍ!

۳۱/۴/۱۳۷۵
کابل

## دوه پرښتې

دوه پرښتې لکه جوړه بتکې
زما د کور په ایینو کې لامبي

❋❋❋

پرښتې ! ای پرښتې !
لاس دې زرغون،
پل دې زرغون،
خو وایه نن دې راته څه راوړي؟
(( هغه زرغون ګل د سپوږمۍ څنو نه ))

❋❋❋

پرښتې ! ای پرښتې !
لاره دې سپینه،
شپې دې سپینې،
وایه تا راته نن څه راوړي؟
(( دا د سپینکي لمر د لاس سپینه توره ))

❋❋❋

پر پګړۍ ګل،
لاس کې مې توره شنه شوه
پښتو ! سپین آس شه
چې د وخت د مغولو جنګ له ورځم.

۲/۵/۱۳۷۵
کابل

# ونه

سکروټې دي، لمبې دي خو ټوکېږي يوه ونه
کلونه پس دې ښار کې زرغونېږي يوه ونه
رګ رګ کې يې د پاڼو خير که وينه پاتې نه ده
ريښه يې په اوبو کې ده غوړېږي يوه ونه
د څانګو په کېږديو کې يو غږ د شپېلۍ نه شته
کوچۍ ښارو رادرومه چې لوېږي يوه ونه
منم چې به لوګر راته کښت لو کړي د لونګو
تالو نه د لاره کله تېرېږي يوه ونه؟
سپېرو سپېرو شملو ته به سبا ګلونه راوړي
په سر مې چې نن سيورې سيورې کېږي يوه ونه.

۸/۵/۱۳۷۵
کابل

# دا جل، دا برسات

شوګير چې درته شپو پر څنو مات راوړی دی
يو خوب مې درته سترګو کې سوغات راوړی دی
دا ډک جام چې نن رېږدي په لاسو کې د فرغون
موسی له کوه طور څنې تورات راوړی دی
دا چا ويل چې ورېږي د پښتون شولې هو جرې؟
دې ورېږو ميکائيل ته هم خيرات راوړی دی
شېبه پر لمبو سره ده او شېبه پر ګلو سره
دې خاورې کله جل، کله برسات راوړی دی
ساعت وروسته رازېږو دا ساعت خير دی چې مرو
تقدير راته بس دغسې حيات راوړی دی
سپېڅلی مسلمان دی خو يې زده نه شوه سجده
دې قام ته خدای دخپل غرور زکات راوړی دی.

۳۱/۵/۱۳۷۵
کابل

# د خوب کوترې

ما بېګاني خوبونه
د ښکلي سيند په طلايي هندارو ټول مات کړل
د خوب زخمي زخمي کوترې مې
د سترې او کوچې سيند د څپو کېږدۍ کې نه ځايېږي
کبه !
دا څه مې وکړل؟

❋❋❋

سيند مې د خوب زخمي کوترو ته يو بام نه لري
د سيند لاسونه خو د غره کاڼو پخوا پرې کړي
څوک به زما د خوب کوترو ته په لپو کې دانې ورکړي؟
کبه !
دا څه مې وکړل؟
کبه !
زما د خوب زخمي زخمي کوترو ته
يو سيوری، يو پناه خو شه !
کبه !
زما د خوب زخمي زخمي کوترو ته
د سترې درد دوا خو شه !
(( نه... نه !
مور مې لګيا ده له سهاره تر ماښامه په زړو ګوتو جامې مينځي

لور مې تمامه ورځ ایینې سره خبرې کوي
زما هم خوب راځي)).

***

سیند لا روان دی
سیند بهېږي پسې
د خوب کوترې مې کوچۍ شوې بېرته نه ستنېږي.

۵/۲/۱۳۷۵
کابل

# مات لمر

يو ستوری ستورو وواژه يو لمر د سبا مات شو
د غرونو په لاسونو مې يو غر د سبا مات شو
منم چې سپين سبا دی شپه کوچۍ شوه چېرته لاړه
موسم د سبا راغی خو وزر د سبا مات شو
دا بيا مې د نشو په ګناه څه نيسې زاهده؟
ساقي لاړه منصور شو او ساغر د سبا مات شو
دا شپې پرېړده اوږدې شي ان چې ستوري ځانګې وکړي
کلاله ! ستا په لاس کې چې هنر د سبا مات شو
موږ وړ د رڼا نه يو تښتېدلو وربځو راشئ !
رهبر د سبا نه شته دی، لښکر د سبا مات شو.

تله ۱۳۷۵
کابل

# هغه دار - هغه چنار

پښتنو وينو غوټۍ وكړې بهار دى
ساقي ګوره چې پېړۍ وروسته مو وار دى
پوروړي څه د تاک د پېغلې نه يو
هر يو رګ يې زموږ د سرو وينو ابشار دى
زنګ وهلې تورې غرپ د لمبو غواړي
ساقي زار شم راكوه يې چې خمار دى
لا د ژيو سوداګر سره جګړه ده
لا خو پاتې جوړ د هغو اوبو ښار دى
رباب ګونګ دى ادم هېرې چيغې غواړي
چا ترې وړى د درخو د غاړې هار دى
شنو زمريو ددې غرو ته خبر وركړئ
چې اباد لا د زړو بګوو غار دى
بيا پر غاړو د شملو غرونه اوچت شول
اورګډ شوى د ټيكريو پر بازار دى
هره پېغله ملالۍ، هر ځوان ايوب دى
هر سنګر مو سور ميوند د كندهار دى

وربځــو دا مــو د یــو څــو ســتورو نېــزې دي
لا کـــاروان مـــو د لمرونـــو خـــو پـــه لار دی
ازمــوینې تــه یــې وختــه ! څــه حاجــت شــته؟
یــو پــه دوو توتــو لــوی، بــل پــه انګـــار دی
هـــر یـــو ښـــاخ یـــې چـــې و دار د ژیـــد ارانو
هغــه وور نیــالګی هســک شــوی لــوی چنــار دی
تــه پــه نشــته غــوږ کــږه خــولۍ پــه ســر وره
مـــا تړلـــی د خوشـــال بابـــا دســـتار دی
اوس نـــو زر لالـــي د نـــورو ترېنـــه زار کـــړئ
چـې مـې ځوړنـد خپـل لالـی پـر سـر د دار دی.

۳/۸/۱۳۷۵
کابل

# مینې ته...

مینې ! له شرمه در کتلی نه شم
پېریان د ((قاف)) له غرونو راغلل
بیا د عشق د پرښتې د ګرېوانه غاړې ته لاس اچوي
ابلیس لګیا دی پر زمزمو ، د ګناه خپله کېږدۍ غوړوي
مینې له شرمه در کتلی نه شم !

❋❋❋

مینې له شرمه درکتلی نه شم
سیلۍ الوتې زموږ د باغ
د سرو ګلونو د ښایسته وو
پاکو میندو په کمڅو کې تومتونه اوبي
مسیح تېره توره په لاس د تومتونو په
واښونو کې زنګېږي او خپل غم ته خاندي
نور په دې ښار کې لېونی د مینې پاتې نه دی
مینې له شرمه در کتلی نه شم !

❋❋❋

مینې له شرمه درکتلی نه شم
چې مو هر غږ پر هوا خور شي دلته ځمکه، دلته خاوره
ترې د غرو په ځېر ماران زېږوي
دلته جنډه د یوه نر پر قبر هم نه شته
شیطان پر ځمکې بادشاه شوی او زموږه پر سرونو

هغه تخت د سلیمان ګرځوي
پېریان یې حمد بولي،
مرغان پرې سیوری کوي،
او به زمونږ له لپو تښتي او بادونه مو په کاڼو ولي
دلته له زړه اسم اعظم هېر دی
مینې له شرمه د رکتلی نه شم !
❋❋❋
مینې له شرمه درکتلی نه شم
نور مو د کلي د ګلونو په کاله کې
پېغلتوب د ګل غوټیو چېرته هم نه شته
او ابراهیم د خپلې ښکلې نازولې د جمال او د عفت
د لوټ کوخو کې د غارت قصې ته خوب وړی دی
نور مو د باغ نجونو ته ((هسکې)) او ((کړې)) شملې
د ښمنې ښکاري.
مینې له شرمه درکتلی نه شم !

۱۲/۹/۱۳۷۵
کابل

# شپه

ای شپې !
راځه چې ځو د خوب په کرونده کې مې ځایېږي خونه
❋❋❋
شپه د کمڅو د غرونو ټال کې ځنګېدلې راغله
پلو د تورو وربځو
په کې پاولې د ستورو
لکه:
کوچۍ پېغله رمه کې د ښایسته وریو
خو د سپوږمۍ هنداره ماته ده ای شپې !
ته به د خپل حسن
او عشق
د پېغلتوب تماشه چېرې وکړې؟

۱/۱۳/۱۳۷۵
کابل

# غزل

بیا رانغلې ښو ته په پستو پستو وزرونو
زما د خوب کوترې ستا د سترګو له بامونو
څلو وهلې ګوره څه خواره واره پرې ګرځي
د شونډو بوراګانو مې ستا د شونډو پر ګلونو
په خپل شرنګ به ویده شمه، په خپل شرنګ به راویښ شم
بنګړي مې کړه د لېچو ګرځوه مې په لاسونو
زما مینه یو سیند دی او ستا زړه وړوکوټی کلی
دا سیند چېرته جانانه او کېږدی د حبابونو
لاښکاري چې موده لېونتوب مې پوره نه ده
یو څوک راته ناري وهي د غرونو له سرونو.

۱۳۷۲ وری
کابل

# ژوند

ښايي چې ژوند يو ګنهکار وي
چې تراوسه پورې
لا د زمان د اسماني سکوت
د دنګو ، دنګو غرو غاړو کې
لکه پر غز ((حنيفه))
چې د الله د مخلوقاتو د ((قاتل))
او د سرو وينو د سېلاب د بهوونکي په نوم
د خدای له شرمه
زنداني د تورې ځمځې پاتې
ها سې د خپلو سرو غچونو
په کوم خوب تللی وي
ځکه:
د ژوند د بنده ګانو هغه شنه خوبونه
د شيطانانو
له تورجنو خوبو
تور پاتې شول.

۱۳۷۲
کابل

# دا هوجرې او دا شملې

نه ساقي شته، نه جانان شته مازيګر دی
څو مره تږی د پيړيو مې ساغر دی
پسرلی نه دی پرې نوم د سپرلي مه ږدئ
ډوب په وينو کې يو سور چريک د لمر دی
د نارنجو ښاخ منم ورته بنګړی شو
خو مات شوی مې مړوند د سپين سهر دی
نازولې سپوږمۍ مه خبروه شه تمه
چې د وربځو اوښ ولاړ درته پر سر دی
شنه منګي مې د جنکو پر ولو مات شول
د نامرده مغل يون پر دې ګودر دی
رانه اخلي د رڼو ستورو ناموس مې
چې ويده د شپو په تيکو کې خنجر دی
ته دې غشي وروره ګوندې چې وينښ شم
لامې پاتې ځای په زړه کې د پرهر دی
د دېرو د قام شملې ورنه لوګی کړئ
د هوجرو طالب ختلی په سنګر دی.

۱۹/۱/۱۳۷۲

کابل

## ليک

څو مياشتې وشوې چې در تللی نه شم
لارو کې ډبرې شنې دي
ګلان د اوښکو وروم پرې
ټوله ورځ د ستا د ياد ښکلې زانګو زنګوم.

❋❋❋

همدا چې لمر شين شي
زموږ د ښار هغې زړې دښته کې
زموږ د ښار مين په کاڼو ولي
زموږ په ښار کې د مينو د سنګسار پسرلی بيا راغلی
نو لوپټه دې غواړم
په کې د خپلو تورو سترګو يو انځور
د نارنجي غړ پر وربښمينو تارو واوبه
راويې لېږه
چې ستا د ياد هغه خيالي حورې مې
زانګو نه باد يو نه سي
راته سنګسار يې نه کړي
څو مياشتې وشوې چې درتللی نه شم
لارو کې ډبرې شنې دي.

۱۲/۲/۱۳۷۲
کابل

# مړوند

مړوند يو خوب، مړوند ستړيا نه لري
مړوند د غره د ابۍ پۍ رودلي.
❋❋❋
تا د سکندر کله ژړا ليدلې؟
يو سپين مړوند پرې د سرو تورو ګوزارونه کوي
يو سپين مړوند يې د غرور د اسويال ربېلی
❋❋❋
سکندر له ليرې لارو راغی د فيلانو له سرو تېر شوی
سکندر د پاروپاميزاد ښاپېريو شنه خوبونه وينې
يو سپين مړوند ورته جګړې ته وتی
ورباندې تندر د مړوند ووري
خو ای د سپين مړوند ((روښانه)) پېغلې
تورې په ورو،
تورې په پام وروه
سکندر په تورې هغه سپينه ډوډۍ نيمه کړله
نقاب دې سپين مړوند ته اور واچاوه.

۱۹/۲/۱۳۷۲
کابل

# د لور غزل

پلـو پـرې د مـخ خـور کـړه غوړېـدلي دي سـرونه
جانانـه ! سـتا وربـل تـه مـوږ کرلـي دي سـرونه
دې قام ته د منصور وايه کوم دار شته دی که نه شته؟
لـوګرو کـه هـر څـو ورنـه رېبلـي دي سـرونه
د يـار د سـينې دښـته کـې د هـار نسـيمه وروځـه
غمـي نـه دي دې ټـال کـې زنګېـدلي دي سـرونه
څراغ چې شي دې دښته کې د وخت ستړي کاروان ته
پـه لـوړ ښـاخ د چنـار کـې ځړېـدلي دي سـرونه
چې سرې سيلۍ شوې ګونګې او د لور غزل يې وچ کړ
هـر ګـل مـو هـرې پـانې تـه ښـندلي دي سـرونه
ايـرې شـول خـو يـو چـم د ټيټېـدلو يـې زده نـه کـړ
الله مـو د غيـرت پـر لمبـو وللـي دي سـرونه
رقيـب پـر ډمـو وپلـوره مـوږ سـر داو کـړ پـر حـورو
يـو چاتـه پـه سـوغات کـې مـو لېږلـي دي سـرونه.

۲۵/۲/۱۳۷۲
کابل

# غزل

سپرلی که راوړی نه شئ ترې د سترګو انځور راوړئ
دې شپو ته سبا نه شته یوه لپه د نور راوړئ
منم چې یو سر نه شته دی چې غچ یې د سر واخلي
دې دار ځنې ملګرو خو دا سر د منصور راوړئ
چې پښو لاندې کړ وربځو ، چې د شپو ډمې پرې خاندي
د لمر تېږې آسونو نه لوېدلی غرور راوړئ
د سترګو تور مو بار که د ((یعقوب)) کړ پر اوښانو
دې وږې مېلمنې ته لږ د ستورو انګور راوړئ
راځي چې تور ماښام کې رانه وړي چې زلمی عقل
یوه یې له تاکونو نه په بدو کې لور راوړئ
په شونډو کې همت که د خندا راوړلو نه شته
دې ښار ته خو تابوت د ځوانیمرګه سرور راوړئ.

۱۲/۳/۱۳۷۲
لغمان

# زما د چم ونه

زما د چم ونه بربنډه ده
شرمېږم ورنه
د باد رهزنو ترې د شنو پاڼو جامې وړې دي
په سپین ټټر يې يو څو ځاځکي دي د خامو پيو
څانګې يې زړه روي،
تيونه يې ارې وړي دي.

❋❋❋

ونې! سپرلی دی
واورې نه شته چې کفن شي درته
زما د مور شنه لوپټه هم بېګاه غلو وړې ده
ما مې خيالي څادر ګرو کړ
ـ د کلو وږی وم ـ
د پلار شمله خو مې له وخته توپانو وړې ده.

❋❋❋

زما د چم ونه بربنډه ده
شرمېږم ورنه
مور مې سر توره ده
ټيکری نه لري
نه څه شمله شته
نه څه خوردی څادر
زموږ د ېرې مازيګری نه لري.

# يو سيوری، يو ګل

مرغو ! چوپ شئ ماله خوب راځي
دلته د زړونو باغچې شنډې دي
يو سيوری او يو ګل نه شته
دلته د سين سپينو هندارو کې
د لمر
د طلايي کبانو رنګ تور شو
دلته د شونډو د موسکاوو هوسۍ
قتلې شولې
غشو يوړې
او بنګړيوا له سپوږمۍ
دلته د تاک پښغلو ته
د ستورو بنګړي نه اچوي
مرغيو !
چوپ شئ
ماله
خوب راځي
مرغيو چوپ شئ ماله خوب راځئ !
❋❋❋
دلته د باغ د شهزادګۍ بکارت مات دی

د سپرلي ښکلې شهۍ
د قاف دېوانو وږې
دلته پرونو
د ((ایوب)) سیوری راخوردی
هرې پاڼې
هر اندام نه یې چینجي ووري
دلته تیارې
د شپو په بلاربو اسپو راغلې
د رڼا درمو لو کوي
دلته کورونو ته
د ژوند له شوم شیروار نه د سپېدو کتهوې تشې راځي
مرغیو !
چوپ شئ
ماله
خوب
راځي.

۱۲/۴/۱۳۷۲
کابل

# ګناه

څومره نېکمرغه يم ګناه کومه
تمامه ورځ ورېځې د باد له ژرندو باسم
او د لمر په تناره کې پسرلي ته ترې ډوډۍ پخوم
څومره نېکمرغه يم ګناه کومه.

❋❋❋

زما د کور دا دېوالونه
د څو خاورو
څو اوبو
او د څه لمر
څو ترکيبونه نه دي
زما له کوره دېوالونه د ښيښو راتاو دي
زما او زما د کاله ختيه يې
د تاک
او د انګورو
او شرابو
په لاسو اېښې ده
ما مې د سترګو د رڼانه نور په وسعت
دومره شراب څښلي دي.

❋❋❋

دومره مغرور يم چې

د هسک د نازولي دربار سیوري لاندې
خپله ځواني راته پېغور ښکاري
خو مانه لوی غلام د ښکلو نه شته
یوه شېبه زما د لاس ببړۍ
د ښکلو د سینو په سمندر کې
سترې شوې نه ده
زه لکه پلار هسې یم
پلار مې تر مړینې نه یوه ګړۍ دمخه هم
د شنو غنمو وږو لاندې
زموږ د کلي د بزګر له ارتینې سره بربنډ پروت و.

۱۳/۴/۱۳۷۲
کابل

# کله چې لمر شين شي

کله چې لمر شين شي
ستا د یادونو شنه ګلان مې د زړګي پر مسا پرې د ښتې څانګې وکړې،
وغوړېږي
کله چې لمر شين شي.

❋❋❋

کله چې لمر شين شي
ستا د یادونو طلايي کبان په ښکلو او زرینو وزرو
زما د سترګو په چینو کې ستا د سترګو تصویرونو نه خوبونه مینځي
کله چې لمر شين شي.

❋❋❋

کله چې لمر شين شي
ستا د یادونو هغه پېغله هوسۍ راشي
تر بېګاه زما د زړه په جل وهليو کروندو کې څري
کله چې لمر شين شي.

❋❋❋

زما د زړه دښته کې څاڅکي دباران نه ووري
زما د سترګو چينه وچه ده، د اوښکو مرغلرې ورنه غلو وړې دي
څوکاله وشول چې ږلۍ مې د زړګي پر فصل ووري او کېږدۍ مې
توپانونو وړې
نو ستا د ياد هغو ګلونو ته باران،

هغو کبانو ته اوبه،
او دې هوسۍ ته به شپونکي څنګه شي.

***

بېګاه شپونکی باد ستا د څڼو له غرو راغی
په پګړۍ کې يې يو ټکی د يو ګل نه و
له نرۍ ملا نه يې لمر هغه زرين وستنی نه و راتاو
چايې په تشې او ريښې ريښې بخخۍ کې يو د ستورو نارنج نه وايښی
نور مې په کلي کې باد نه چلېږي، باد هم مساپر شو ورنه
څو مره تنها،
څو مره يوازې ده
زما د کلي ښکلې نازولې سپوږمۍ.

***

بېګاه مې خوب ليدلی:
زموږ د کلي د چنارو تر شنو سيورو لاندې
پر هغو لويو پلنګې کټونو
يو څو کارغان ناست دي
ږلۍ د لښتو وروي، ګډوي ځان ته زموږ د کلي سپينې هيلۍ
زموږ د کلي په دېره کې د چلمو د کږو وږو لوګيو پر ځای
خورې ورې دي د ښايسته هيليو تکې سرې د پېغلو وينې
کلي کې يو سيوری د برېتو
او يو شرنګ د سپينو تورو نه شته
رښتيا!
د کلي په دېره کې

د زلمیو څپو رو
د اتڼ هغه سکنې مانښام درياد شي که نه؟
❋❋❋
ستا دیادونو شنه ګلان مې
د زړګي پر مساپرې دښتې څانګې وکړي
وغوړېږي،
کله

چې
لمر
شين
شي.

۱۲/۷/۱۳۷۲
پېښور- پښتونخوا

# غزل

څه ښکلی سوداګر دی څومره ښکلی باران پلوري
یو اس د سپینو وربځو دی د وربځو ګلان پلوري
د ستورو په تېښو یې جوړې کړي ورته څنې
نن دلته په دې چم کې یو کافر دی بتان پلوري
یو بار یې د رنګ راوړ د سپرلي جوارګر ګورئ
چې څومره یې ګران راوړ چې یې څومره ارزان پلوري
یو شین لوګی راخوردی یو سور اور دی لګېدلی
یو مست زردشت راغلی دی یو غلی اذان پلوري
بازار یې د نور لوټ کړ د اسمان سپینې کوترې
له لمر ځنې ټیک اخلي او د ستورو کاروان پلوري
د باد په نیلي سپور د سهار سپین شهزاده راغی
د شپو بربنډې پېغلې پرې شلېدلی ګرېوان پلوري.

۱۳۷۷ کال د پسرلي لومړۍ شپه
لغمان

# د اسحق ننګيال لنډه پېژندنه

**زوکړه:**

لغمان- الینګار، دبسرام کلی، ۱۳۳۵ل کال.

**زده کړه:**

سيمه ييز ښوونځی، د مهترلام ښار روښان لېسه او د افغانستان د پوليسو اکاډمي.

**دنده:**

د پوليسو اکاډمی تدريسي غړی، د څارندوی مجلې او پيام ورځپاڼې خبريال او د ليکوالو ټولنه کې لنډمهال، د ژوندون مجلې مدير او وروسته د اطلاعاتو او کلتور وزارت د شعر او ادب اداري امر.

**اثار- چاپ:**

۱- ډالی، ۲- سپېره ډاګونه او غوړېدلي بزغلي، ۳- هغه شپې هغه کلونه، ۴- څاڅکي څاڅکي (شعري ټولګې) ۵- (۱-ښېرې په مالت کې، ۲- نه جام نه څادر، ۳- سندونه هم مري، ۴- دا جل دا برسات او ځينې نور شعرونه) چې په همدې اثر کې (سيندونه هم مري) کې ځای شوي دي.

**ناچاپ:**

سيند په منګي کې (د بېلابېلو ليکنو ټولګه) او يو شمېر نورې ليکنې.

**مړينه:** پېښور، ۱۳۷۷ل کال د ثور اتمه.

# یو باد ، یو منصور

یو بـــاد رالګېــــدلی مالـــه ځانـــه ســـره وړي
د زړه اس مــــې لـــه بـــاره د ارمانـــه ســـره وړي
د شـپو پـراوښ یـو غـل دی زمـوږ کلـي تـه راغلـی
ګلونــــه او باغونــــه لــــه باغوانــــه ســــره وړي
یـو پـل وم چېرتـه لـرې ستا پـر لاره زرغـون شـوی
یــو لــوټ مــې اوس لـه بادولـه بارانـه سـره وړي
یو څوک دی ستا لاس شراب یې ټول راځنې وڅښـل
دا سره کېـږدی د خـوب مـې لـه توپانـه سـره وړي
زمـوږه یـې پـه سـترګو کـې د شـپو دوړې شـیندلي
دا لـوی کـاروان مـو ځکـه لـه څاروانـه سـره وړي
نـارې د انـاالحق یـې ورتـه وچـې کـړې پـر ژبـې
منصـور وطـن مـې دارتـه لـه ایمانـه سـره وړي

۱۷/۱/۱۳۷۷
لغمان

# د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه



محمد اسمعیل یون د حاجي محمد خان زوی پر ۱۳۴۲ل کال، د لغمان ولایت د الینګار ولسوالۍ د نیازیو په یوې روښنفکرې کورنۍ کې زیږېدلی دی.

لومړنۍ زده کړې یې د الینګار ولسوالۍ د سلینګار په لومړني ښوونځي کې سرته رسولي دي، تر هغه وروسته کابل ته راغی او په خوشال خان لېسه کې شامل شو. پر ۱۳۶۲ل کال له نوموړې لېسې څخه په دویم نومره بریالی او پر ۱۳۶۷ل کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې محصل شو. پر ۱۳۷۰ل کال له نوموړې څانګې څخه اول نومره بریالی او پر همدې کال بېرته د پښتو څانګې د کدر غړی شو. پر ۱۳۸۵ل کال په نوموړې څانګه کې د ماسترۍ دوره پیل شوه، یون په ډېر ښه او بریالي ډول دا دوره پایته ورسوله.

محمد اسمعیل یون له ۱۳۷۰ ل کال څخه بیا تر ننه پورې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي تدریسي غړی او د(پوهندوی) علمي پوړۍ ته رسېدلی دی، پر استادۍ سربېره، استاد یون د ((کابل پوهنتون))، ((هیلي)) او((شمشاد ))مجلو د چلوونکي دنده هم په ښه ډول ترسره کړې ده. په پېښور کې د چاپېدونکې ((معارف)) مجلې کتونکی غړی هم و. همدارنګه دیو شمېر نورو چاپي خپرونو همکار هم پاتې شوی دی.

استاد یون پر ۱۳۸۱ل کال، په جلال اباد کې بېړنۍ لویې جرګې ته د ختیزو ولایتونو د انتخاباتو د دفتر مشر شو، ددې جرګې لپاره تر ټاکنو وروسته د جرګې غړی، بیا د جرګې د غړو له خوا د بېړنۍ لویې جرګې دلومړي منشي په توګه انتخاب شو. استاد یون په دې جرګه کې تر خپل وروستي وسه خپل ملي او تاریخي مسولیت ادا کړ او د هېواد دښمنه عناصرو د توطیو مخه یې ونیوله.

تر دې جرګې وروسته، کله چې د افغانستان د اساسي قانون د تدوین بهیر پیل شو، نو استاد یون بیا ددې بهیر لپاره د ختیزو ولایتونو د دارالانشاد دفتر مشر وټاکل شو. په ختیزو ولایتونو کې د اساسي قانون د لویې جرګې لپاره انتخابات هم د همدې دفتر له خوا ترسره شول.استاد یون د اساسي قانون د تصویب په لویه جرګه کې د نوموړې جرګې د دارالانشا د غړي په توګه خپل فعال رول ادا کړ. ټاکل شوې وه، استاد یون په ختیزو ولایتونو کې د افغانستان د جمهوري ریاست لپاره د عمومي ټاکنو د دفتر مسول شي، خو په

کابل کې د لويو جنګسالارانو او ځينو تنظيمي مشرانو له خوا پر حکومت او ملګرو ملتونو د زيات فشار له امله له کاره ګوښه شو.ملګرو ملتونو(UNAMA) استاد يون ته وړانديز وکړ، چې په کابل کې به تر دې لوړه دنده درو سپارو، خو استاد يون ونه منله او خپلې استادۍ ته يې دوام ورکړ.

درې کاله وروسته يې د ځينو ملګرو په زيات ټينګار او غوښتنه، د جمهوري رياست د ملي امنيت شورا په دفتر کې د فرهنګي چارو د رياست دنده ومنله او په کابل پوهنتون کې پر استادۍ سربېره لا تر اوسه دا دنده پر مخ وړي.استاد يون پر ۱۳۸۵ل کال د افغانستان او پاکستان د امن ګډې جرګې لپاره د افغانستان له خوا د منشي په توګه غوره شو او دا دنده يې هم په ښه ډول ترسره کړه.

استاد يون د خپلو اک ليکوال په توګه په تېرو شلو کلونو کې ګڼ شمېر فرهنګي او ټولنيز خدمتونه ترسره کړي، په ګڼو چاپي، راديويي او ټلويزيوني مرکو کې يې د و اقعيتونو او حقايقو د څرګندبيان له امله د خلکو په زړونو کې ځای نيولی دی. که څه هم ډېر خلک د يون ليکنې، مرکې او نظريات خوښوي، خو يو شمېر داسې خلک هم شته، چې د يون سرسختي مخالفين دي. د هغه ملي او ګټورو نظرياتو ته هم غلط رنګ او تعبير ورکوي، دا ډول اشخاص، چې اکثره يې زورواکي او د سياسي ډلو ټپلو غړي او مشران دي، د استاد يون نظريات خپلو شخصي او تنظيمي ګټو ته خطر بولي، نو ځکه يې په ټينګه مخالفت کوي. زه د دې شاهد يم،

هر کله چې يون کومه ليکنه او مرکه کړې، نو دده پر وړاندې يې مثبت او منفي غبرګونونه دواړه راپارولي دي، منفي غبرګونونه اکثره وخت د هغو اشخاصو او ډلو له خوا وي، چې په تېر کړکېچن سياسي بهير کې يې ډېرې نامشروع ګټې ترلاسه کړي او ځانونه يې مطرح کړي دي.

مثبت غبرګونونه اکثره د ولس د مشرانو، روښنفکرانو او نورو مخورو له خوا وي، خو استاد يون په دغسې سختو اغزنو او تنګو شرايطو کې بيا هم خپل فرهنګي، سياسي او ټولنيز کار ته دوام ورکوي.

دا اوسنی فرهنګي کار، چې تاسو يې اوس په مسلسل ډول ګورئ، دا د تېرو شلو کلونو کارونه دي، چې له تېر يو نيم کال راهيسې پرې په منظم ډول کار شوی، اوډل شوي او دادی ستاسو مخې ته اېښودل کېږي، په داسې يو دولتي دفتر کې چې بوختياوې په کې ډېرې وي، د منظم او ستر فرهنګي کار سرته رسول اسانه کار نه دی.استاد يون پر خپلو فرهنګي کارونو سربېره د ګڼو فرهنګي ټولنو د غړي، همکار او موسس غړي په توګه هم خپل فرهنګي رول ادا کړی، په پېښور کې يې د دوو المان مېشتو فرهنګي ټولنو (دافغانستان دکلتوري ودې ټولنې) او(د پښتني فرهنګ د ودې پراختيا ټولنې) د همکار په توګه د بېلابېلو ليکوالو په لسګونو اثار، ايډيټ او چاپ کړي دي دغه راز يې په سلګونو کورنيو مشاعرو، ادبي غونډو او سيمينارونو کې ونډه اخيستې ده، خپله

يې هم په لسګونو مشاعرې، سيمينارونه او علمي ورکشاپونه جوړ کړي دي.
سربېره پر دې، په يو زيات شمېر، ملي او نړيوالو کنفرانسونو کې يې په ښه ډول د خپل هېواد استازي کړې ده. دلته به يې د اثارو يادونه وکړو:

## اثار

### الف- پنځونې:

| کتاب نوم | څرنګوالی | چاپکال |
|---|---|---|
| • مټکور | لومړۍ شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • په اورونو کې سندرې | دويمه شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |

### ب- راټولونې:

| | | |
|---|---|---|
| • هيلې | ګډه شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • نيمګړي ارمانونه | د حيران شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • د لوونو فصل | ګډه شعري ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • د نازو انا ياد | د سيمينار د ليکنو ټولګه | دويم ۱۳۸۷ |
| • د استاد الفت نثري کليات | داستاد الفت نثرونه | دريېم ۱۳۸۷ |
| • سيندونه هم مري | د اسحق ننګيال شعري منتخبات | دويم ۱۳۸۷ |

### ج- ژباړنې:

| | | |
|---|---|---|
| • د ټولنپوهنې له نظره: په افغانستان کې د واک جوړښتونه | د پوهنوال روستارتره کي اثر | دويم ۱۳۸۷ |
| • .د افغانستان فرهنګي ميراثونو ته يوه کتنه | د نينسي دوپرې اثر | دويم ۱۳۸۷ |

- په افغانستان کې د جګړې جنایتکارانو محاکمه
  د پوهنوال روستار تره کی اثر دویم ۱۳۸۷

## د - یونلیکنې:

- د اماراتو سفر د اماراتو یونلیک دویم ۱۳۸۷
- که یون دی یون دی د اروپا یونلیک لومړی ۱۳۸۷
- د پنتاګون ترڅنډو د امریکا یونلیک لومړی ۱۳۸۷

## هـ- څېړنې او شننې:

- د محمدګل خان مومند اند و ژوند ته یوه لنډه کتنه دویم ۱۳۸۷
- استاد زیار د پښتني فرهنګ یو ځلاند ستوری دویم ۱۳۸۷
- دکابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي پښتو کتابښود دویم ۱۳۸۷
- د افغانستان فرهنګ ته اوښتي زیانونه دویم ۱۳۸۷
- د پښتو شعر هندسي جوړښت شپږم ۱۳۸۷
- له افغانستانه د مسلکي کادرونو د فرار عوامل دویم ۱۳۸۷
- ساینسي پرمختیاوې دویم ۱۳۸۷
- ببرړنۍ لویه جرګه ولسواکي او زورواکي دویم ۱۳۸۷
- اند یال خوشال لومړی ۱۳۸۷
- هیله د خپلو سریزو په لمن کې لومړی ۱۳۸۷
- کلتوري یون لومړی ۱۳۸۷
- فرهنګي فقر لومړی ۱۳۸۷
- مرکه او مرکې لومړی ۱۳۸۷
- خوشال په خپل ایډیال لومړی ۱۳۸۷
- دکتابونو په وړمو کې لومړی ۱۳۸۷
- افغانستان په سیاسي کړلېچ کې لومړی ۱۳۸۷
- پښتو لیکنی سمون لومړی ۱۳۸۷

- اوسنۍ رسنۍ لومړی ۱۳۸۷
- کهنړیوال ماته وخوري؟ لومړی ۱۳۸۷

خدای(ج) دې استاد یون ته ډېر عمر ورکړي او جرئت دې ورته هم تاند لري، الله(ج) دې دی له هر ډول بدو بلاوو وژغوري، په فرهنګي کارو زیار کې ورته دنور زغم او وسېلې هیله لرم.

په درناوي
وفاالرحمن وفا
کابل- افغانستان

